بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين الرحمن الرحيم مالك يوم الدين، والصلاة والسلام على رسوله محمد و على آله و أصحابه و من استن بسنته و تأدب بأدبه و تخلق بخلقه و دعیٰ بدعوته إلى يوم الدين.

وبعد:

الله سبحانه وتعالی د ټولو کائناتو او موجوداتو خالق او پنځوونکی دی او همغه جل جلاله د دې ټولو پالونکی او پناکوونکی دی.

هغه سبحانه وتعالی خپلواک ټولواک دی، په هر څه، هرچا او هر شي بشپړ برلاسی دی.

له هغه جل جلاله هيڅ پټ او پنانه دي او د هغه جل جلاله له ارادې پرته هيڅ نه شي کېدی. هغه جل جلاله د خپلې ټولواکۍ (پاچايی) او د کائناتو د نظام په چلولو کې هيچا او هيڅ شي ته اړنه دی او د هغه سبحانه وتعالی په کړو کې هيڅ عبث نشته.

" أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ "[١]

[١]- سورة المؤمنون: ١١٥.

" نو آیا تاسو دا ګڼلې، چې ګنې مونږ تاسو عبث پیدا کړي یئ او تاسو مونږ ته نه راګرځول کېږئ ".

د الله سبحانه وتعالی هر کار له حکمتونو او رازونو څخه ډک دی؛ خو د هغه جل جلاله په مخلوق کې د هیچا له وسه دا پوره نه ده، چې د هغه له حکمتونو او رازونو څخه خبر شي؛ مونږ ته یوائې د ځینو بېلګو څرک راجوتېږي، چې هغه له سمندر څخه د یو څاڅکي په کچ هم نه دی .

## اسلام نړیوال دین

نو آیا هغه الله سبحانه وتعالی، چې دا انسان او پېریان یې پیدا کړي دي او د دوی پیداوښت یې عبث نه دی کړي؛ هغه جل جلاله به دې نړۍ ته د دوی د لارښوونې لپاره کوم نظام او قانون نه وي رالېږلی؟! دا هیڅکله نه شي کېدی او هیڅ سالم عقل دانه مني، چې ګنې حکیم ذات الله تعالی دې انسانان او پېریان پیدا کړي وي او بیا دې یې خپل سرته پرې ایښي وي، چې هر څه کوي؛ کوي دې او هیڅ لارښوونه دې ورته نه کوي!.

بلکه د حکیم ذات د حکمت غوښتنه داده، چې خپلو ناپوهو، بې وسو او محتاجو بندګانو ته دې هرو مرو د ژوند یو نظام، یو قانون او یوه کړنلاره راولېږي، څه پولې او بریدونه دې ورته وټاکي او څه لارښوونې دې ورته وکړي.

حکيم ذات الله جل جلاله دا کار کړی دی. هروخت يې په انسانانو کې خپل استازي ټاکلي دي، هغوی ته يې کتابونه او احکام رالېږلي دي، پولې او بريدونه يې ورته ټاکلي دي، ګروهې او کړنلارې يې ورته په ګوته کړې دي، د نېکمرغۍ لارښوونې يې ورته کړې دي او قانون او نظام يې ورته رالېږلی دی، چې هغه ته اسلام وايي. د ژوند د برېدونو ټاکل، او يو نظام او قانون دين بلل کېږي اود الله تعالی له لوري رالېږل شوی دين اسلام بلل کېږي.

د انسان شامله، هر اړخيزه او بشپړه نېکمرغي، سوکالي او ښېګړه د الله تعالی په رالېږلي دين (اسلام) کې نغښتې ده، نو همدا د اسلام دين حق دين دی او له اسلام نه پرته بل دين او قانون هېڅکله حق نه شي ګڼل کېدی.

الله تعالی فرمايي:

" إِنّ الدّينَ عندَ الله الإِسْلاَمُ وَمَا اخْتَلَفَ الّذينَ أُوتُواْ الْكتَابَ إِلاّ من بَعْد مَا جَاءهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنهمْ وَمَن يَكْفُرْ بِآيَاتِ الله فَإِنّ الله سَرِيعُ الْحِسَابِ "[1]

" له الله سره حق دين اسلام دی او کتابيانو خپلو منځوکې د سرکشۍ له امله له دې وروسته اختلاف وکړ، چې علم ورته راغی او چاچې د الله له آياتونو نه انکار وکړ، نو الله بې شکه ګړندی حساب کوونکی دی ".

[1]- سورة آل عمران: ١٩.

په نړۍ کې ډېر دینونه، ګروهې، افکار، کړنلارې او قوانین دي؛ خو وړ او حق دین د اسلام دین دی او دا ځکه چې دا د الله تعالی دین دی. الله تعالی فرمايي:

" أَفَغَيْرَ دِينِ الله يَبْغُونَ وَله أَسْلَمَ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ طَوْعًا وكَرْهًا وَإِلَيْهِ يُرْجَعُونَ "[1]

" نو آيا دوی د الله له دين پرته بل دين لټوي؟ حال دا چې په اسمانونو او ځمکه کې چې څوک دي؛ په خوښۍ او ناخوښۍ يې هغه ته غاړه ايښې ده او همغه ته ورګرځول کېږي ".

نو هغه ذات، چې دا ټول کائنات او موجودات يې پيدا کړي دي، پالنه يې کوي او په ټولو کې د هغه تکويني حکم نافذ دی؛ که څوک وغواړي او که ونه غواړي، خوښه يې وي او که نه، د هغه جل جلاله فطري، طبيعي او تکويني نظام به پرې پلی وي، نه د هغه جل جلاله له ځمکې نه تللی شي او نه د هغه له شپې او ورځې نه تښتېدی شي، نه په خپل فطري جوړښت کې د څه بدلون واک لري او نه د ژوند او مرګ، پيدا او پنا پرېکړه مخکې وروسته کولی شي. او هغه ذات چې هيچاته اړ نه دی او په خپلو ټولو کارونو کې ټولواک او خپلواک دی، د هغه دين به د منلو وړ او د نېکمرغۍ لامل وي او که د هغه چا ،چې تل بې وسه، اړ اومحتاج وي؟.

الله تعالی فرمايي:

" وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الإِسْلاَمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنه وَهُوَ فِي الآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ "[1]

---

[1]- سورة آل عمران: ۸۳.

" او چا چې له اسلام پرته بل دين ولټاوه، نو هېڅکله به ورڅخه ونه منل شي او هغه به په اخرت کې له تاوانيانو څخه وي ".[1]

الله تعالی له خپلو بندګانو څخه بل هيڅ دين نه قبلوي، يواځې اسلام قبلوي، ځکه چې اسلام يې د خپلو بندګانو لپاره غوره کړی دی او دا ځکه چې د اسلام ټولې لارښوونې اواحکام د همغه جل جلاله له پلوه راغلي دي.

الله تعالی فرمايي:

" الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الإِسْلاَمَ دِينًا "[2]

" نن ماتاسو لپاره ستاسو دين بشپړ کړی دی، په تاسو مې خپل نعمت پوره کړی دی او دين مې تاسو ته اسلام خوښ کړی دی".

اسلام هم پوره دی او هم کره. د انساني ټولنې ټولې نېکمرغۍ په اسلام کې نغښتې دي او په دې دين کې هيڅ کمی او زياتی نه منل کېږي. دا دين هيڅ ډول پيوند او ترميم ته اړتيا نه لري اودا دين د محمدرسول الله صلی الله عليه وسلم له بعثت نه تر قيامته پورې په هر وخت کې د هر چالپاره، په هر ځای او هر ډول شرائطو کې د تطبيق او نفاذ وړ دی، دا د کوم ځانګړي وخت، ځانګړي ځای، ځانګړي قوم او خېل يا ځانګړيو شرائطو لپاره نه دی راغلی، دا دين نه زړېږي او نه نړېږي؛ بلکه تل تازه او د نفاذ وړ دی.

---

[1]- سورة آل عمران: ۸۵.

[2]- سورة المائدة:۳.

دا دين د انساني او جني نړۍ لپاره کوټلي، پاخه او نه بدلېدونکي بريدونه او له ښېګړو او محاسنو نه ډکې لارښوونې اواحکام لري. او څرنګه چې الله تعالی د اسلام آخري دين بشپړ کړه پوره رالېږلی دی، نو ځکه يې د آخري پېغمبر محمدصلی الله عليه وسلم په رالېږلو د پېغمبرانو دبعثت سلسله وتړله ، هغه يې د ټولو خلکو لپاره وټاکه او ورته ويې فرمايل:

" وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلاّ كَافَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيراً وَنَذِيراً " [1]

"او مونږ ته د ټولو خلکو لپاره زېرى وركوونكى او وېروونكى لېږلى يې".

نو (كافة للناس) (دټولو خلکو لپاره) کې د ختيز او لوېديز، شمال او جنوب، عرب او عجم، تور او سپين، نارينه او ښځينه ټول داخل دي.

له ماسره د لنډيکوتل په جېل کې يو نيپالی هندو بندي ؤ، چې (تارا) نومېده؛ هغه ته ما د اسلام محاسن بيان کړل او د اسلام بلنه مې ورکړه؛ هغه سره څه پوښتنې وې؛ د هغو ځواب مې ورکړ، بېخي مطمئن شو او په دې يې اعتراف وکړ، چې اسلام ډېر ښه دين دی او قرآن د الله تعالی کتاب دی. له ماڅخه يې عنوان واخيست او راته ويې ويل چې زه به د اسلام په هکله مطالعه وکړم او که څه پوښتنې راسره وې، نو له تاسره به اړيکه ونيسم.

هغه له مانه يوه پوښتنه دا وکړه، چې د اسلام پېغمبر کله راغلی دی؟

---

[1] ـ سورة سبا: ٢٨.

ما ورته وويل: هغه چې کله الله تعالی د پېغمبر په حيث ټاکلی دی او د اسلام بلنه يې پيل کړې ده، نو تر ننه (۱۴۴۱) څوارلس سوه يوڅلوېښت کلونه وشول، چې (۱۳) له هجرت نه مخکې د بعثت وو او له هجرت نه را وروسته اوس د هجرت (۱۴۲۸) څوارلس سوه اته ويشتم کال دی، چې ټوله مجموعه (۱۴۴۱) کېږي.

هغه سره دا پوښتنه پيدا شوه، چې د بدمت (د هندوانو د دين) څو زره کاله وشول، نو له اسلام نه په زرونو کاله مخکې دی او دا ددې دليل شو، چې (بدمت) دمنلو زيات حقدار او پخوانی دی.

ما ورته وويل، چې لومړی خبره خو دا ده، چې قدامت او وړاندې والی د حق معيار نه دی، بله دا ده، چې محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم داسې کوم نوی دين نه دی راوړی، چې بې ساري دی او پخوا داسې دين نه ؤ؛ بلکه محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم د انبياؤ د زنځير اخري کړۍ ده او د انبياؤ سلسله د انسانانو له لومړي پيداوښت سره سمه پيل شوې ده، چې لومړی د ټولو انسانانو لومړي پلار: آدم عليه السلام نه پيل شوه، بـــيا د نـــوح عليه السلام پورې انسانان ټول په سمه لار او هدايت باندې روان وو؛ کله چې مختلف شول، شرک کفر او سرغړونه پيل شوه، نوالله تعالی نوح عليه السلام د لومړي پيغمبر په حيث وټاکه هغه مسلسل نهه سوه پنځوس (۹۵۰) کاله د الله تعالی دين ته بلنه ورکړه او قوم يې مسلسل انکار او سرغړونه وکړه، هغه خپل قوم ته ښېرې وکړې.

او ويې فرمايل:

" رَّبِّ لاَ تَذَرْ عَلَى الأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّاراً إِنَّكَ إِن تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا عِبَادَكَ وَلاَ يَلِدُوا إِلاَّ فَاجِراً كَفَّاراً " [١]

" ای زما ربه! پر ځمکه د کافرانو هيڅ کور پرې نه ږدې؛ که پرې يې ږدې، نو ستا بندګان به بې لارې کړي او يواځې ناشکره بدکار به وزېږوي ".

الله تعالی د نوح علیه السلام دعاء قبوله کړه، هغه او له هغه سره ببړۍ کې ژوي يې وژغورل او د ځمکې نور ټول خلک يې په طوفان کې ډوب او هلاک کړل.

دااوسنۍ نړۍ او دانسانانو مختلفې پرګنۍ د هغه د درې زامنو اولاد او نسل دی. چې (حام، سام، او يافث) نومېدل، نو له نوح علیه السلام څخه د پېغمبرانو درا لېږلو زنځير پيل شو او د انبياؤ د دې زنځير په آخري کړۍ (محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم) باندې دا زنځېر بشپړ شو.

د ټولو پېغمبرانو اصولي او عقيدوي بلنه او دين يوؤ؛ لکه د الله تعالی په توحيد، پرښتو، کتابونو، پېغمبرانو، تقدير او بيا را ژوندي کېدلو، قيامت، حساب کتاب، جنت او دوزخ باور او ايمان لرل.

دا دعوت د ټولو يوؤ، نوله همدې امله د ټولو پېغمبرانو دين يو ؤ او دهريو د دين نوم (اسلام) دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم ته الله تعالی فرمايي:

---

[١]- سورة نوح: ٢٦- ٢٧.

" قُلْ مَا كُنتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ وَمَا أَدْرِي مَا يُفْعَلُ بِي وَلَا بِكُمْ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ وَمَا أَنَا إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ " ١

"ورته ووايه، چې زه کوم بې ساري او بې مثاله نوی پېغمبر نه يم او نه په دې پوهېږم، چې پر ما څه کېږي او نه په تاسو؟. زه يوائې د هغه څه تابعداري کوم، چې وحې يې راته کېږي او زه يوائې څرګند ويروونکی يم".

نو معلومه شوه، چې د اخري پېغمبر محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم دعوت او دين له ټولو باطلو دينونو څخه پخوانی دی او د ټولو حق او اسماني دينونو د تسلسل د پای ټکی او د پېغمبرانو د زنځير آخري کړی ده.

په نور اسماني دينونو او اسمانې کتابونو کې ګوتوهنه، لاسوهنه او تحريف شوی دی، تغير او تبديل پکې راغلی او ترميم پکې شوی دی. او اسلام يوائينی او ځانګړی دين دی، چې الله تعالی له هر ډول تحريف، تغير او تبديل، لاسوهنې او ترميم نه ساتلی دی، او قرآن يوائينی کتاب دی، چې تر اوسه بشپړ او مکمل له هر ډول بدلون څخه ساتل شوی دی او دا ځکه، چې الله تعالی د دې د ساتلو ذمه وهلې ده لکه چې فرمايي:

" إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ "٢

" مونږ بې شکه دپند کتاب نازل کړی دی او يوائې مونږ د دې ساتونکي يوو ".

[١] - سورة الاحقاف:٩.
[٢] سورة الحجر : ٩.

يواځې اسلام دی، چې د دې د پېغمبر محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم احاديث (خبرې، کړه وړه، دهغه په اقرار ثابت کارونه او دهغه صفتونه او خويونه) د اشخاصو او راويانو په چاڼ شويو، رښو، کره او غښتليو سندونو، او پرله پسې دپيوستو انساني کړيو زنځيرونو باندې مونږ ته را رسېدلي دي، چې ددې پولادي زنځيرونو يو سر د دې امت د هرې پېړۍ، هر پړاو او هرې پوړۍ په لاس کې دی او بل سر يې د رسول الله صلی الله عليه وسلم په لاس کې دی. دا زنځير نه شلېدونکی، نه ماتېدونکی اونه بدلېدونکی دی، نو ځکه د نړۍ پوهان او مفکرين ورته ګوته په غاښ دي او دې ته اړ شوي دي، چې اعتراف او اقرار وکړي، چې ريښتيا هم د احاديثو کره او ثابت سندونه هغه ځانګړتيا، امتياز او تشخص دی، چې يواځې اسلام يې لري. له اسلام پرته کوم دين دی، چې د هغه د پېغمبر خبرې اوکړه وړه د بخاري او مسلم غوندې چاڼ شويو کتابونو او چاڼ شويو سندونو باندې راپاتې وي؟.

او کوم دين دې، چې د ابوداود، ترمذي، نسائي، ابن ماجه، دارمي، موطا،مسنداحمد، سنن بيهقی، دارقطني، ابن خزيمه، ابن حبان، مسندابي عوانه، مسندحميدی، مستدرک حاکم، مصنف ابن ابی شيبه، مسندعبدالرزاق، طيالسي، شعب الايمان، ابن عساکر، طبراني او نورو جوامعو، سننو، مسانيدو، اجزاؤ او معاجمو غوندې يې پېغمبر ته په سند خبرې او کړه وړه رسېدلي وي؟.

او کوم دين دی چې اسلام غوندې درجالو، جرحې او تعديل اصول او راټولوونکي کتابونه ولري؟ چې نومونه، لقبونه، کنيې، نسبتونه، بلدان، مواليد، وفيات او نور......... پکې بشپړ رانغښتي وي او د اصول حديث يا مصطلح الحديث غوندې چاڼ يې ورته لګولی وي او د کوټليو بنسټونو تله يې ورته ايښې وي، چې هر کره او کوټه پرې معلومېږي، د دروغو، درغليو او تېروتنو ټولې لارې پرې تړل کېږي او روڼ، سپين، پاک، سوچه او نږه دين خپلو معتنقينو او منونکيو ته وړاندې کوي او سمه، پاکه، روښانه، جوته او د دنيوي او اخروي نېکمرغيو لار ورښيي؟!.

دا دين يوائې اسلام دی، دا کتاب يوائې قرآن دی او دا أحاديث يوائې محمدي سپېڅلي نبوي احاديث او سپېڅلی نبوي سيرت دی، چې دا ټول مخکني مشخصات ، ځانګړتياوې او مميزات لري.

نو ځکه په بشپړ، کره پوره، پولادي او غيرمتزلزل، غير متردد او نږه باور وايو، چې اسلام د بشري نړۍ لپاره د ښېګړو، نېکمرغيو، برياو، امن، سوکالۍ، پرمختګ او محاسنو دين دی او د دې دين منونکي او دې ته غاړه ايښودونکي مسلمانان او مؤمنان بلل کېږي، نو ځکه الله سبحانه وتعالی فرمايي:

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اتَّقُواْ اللّه حَقَّ تُقَاتِهِ وَلاَ تَمُوتُنَّ إِلاَّ وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ "١

---

[1] - سورة آل عمران:١٠٢.

" اى مؤمنانو! له الله نه په حق ځان ژغورلو ځانونه وژغورئ او يواځې په داسې حال کې ومرئ، چې تاسو مسلمانان يئ ".

او ځکه دې مؤمنانو او مسلمانانو ته فرمايي:

" وَلَاتَهِنُوا وَلَاتَحْزَنُوا وَأَنتُمُ الأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ " ۱

" او مه سستېږئ او مه خپه کېږئ؛ که مؤمنان وئ، نو يواځې همدا تاسو ډېر لوړ يئ ".

د اسلام په هکله چې د اسلام دښمنانو کوم زهرجن تبليغات کړي او کوي يې په دې يې يواځې له خپل ځان سره نه، بلکه له ټولې بشري نړۍ سره دښمني کړې ده او ټول هغه خلک يې له دنيوي او اخروي برياؤ، ښېګړو او نېکمرغيو نه بې برخې کړي دي، چې د دوى د زهرجنو تبليغاتو او د دروغوتورونو او پلمو د اغېزې لاندې راغلي دي او له اسلام نه يې کرکه پيدا شوې ده.

د دې داسې مثال دی، لکه يو څوک چې د خوښيو، خوشبويو، رنګونو او خوندونو نه ډک ګلبڼ ته خلک رابلي او يو درغلګر پيدا شي؛ هغه ورته د نېکمرغيو د دغه ګلبڼ په هکله غلط ملعومات ورکړي، له ګلبڼ نه يې راوګرځوي او په ګړنګونو يې ورسم کړي. اسلام ټول ښېګړې ښېګړې، محاسن محاسن او سر تر پايه نېکمرغۍ دي؛ خو مونږ به د ساري په توګه د اسلام د ښېګړو ځينې بېلګې وښيو، تر څو ډېرو بې خبروته حقيقت څرګند او له پټو واقعيتونو نه پرده پورته شي.

۱- سورة آل عمران: ۱۳۹.

دا تحديد نه بلکه تقريب دی. مونږ لوستونکي دې ته هڅوو، چې د اسلام په وره ورننوځي او وړاندې هر څه په بصارت او بصيرت د سراو زړه په سترګو وګوري او بيا پخپله ازاده، خپلواکه، دعدل اوانصاف پرېکړه وکړي او په ړوند تقليد د اسلام د کينه کښو او معاندو بې انصافه دښمنانو د پلمو او تبليغاتو له اغېز لاندې ړنده پرېکړه ونه کړي.

## له تعصب نه پاک دين.

لکه مخکې مو چې وويل؛ اسلام نړيوال او د انسانيت دين دی دا دين له هر ډول قومي، ژبني، رنګ، نسل او سياسي تنګو بريدونو د تعصب او کرکې نه پاک دين دی، په دې کې د عرب او عجم، تور او سپين توپير نشته، ددې ځمکې ختيز، لوېديز، شمال او جنوب ټوله يوه نړۍ ده. په اسلام کې د فضيلت معيار او تله يواځې ديانت دی؛ په انسانيت کې ټول يو ډول د آدم او حوا اولاد دی.

الله سبحانه وتعالی فرمايي:

"يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَى وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ "[1]

---

[1]- سورة الحجرات: ۱۳.

"ای خلکو! مونږ تاسو له يو نر او ښځې نه پيدا کړي يئ او ددې لپاره مو په قومونو اوخېلونو وېشلي يئ، چې يو تر بله سره وپېژنئ. له الله سره په تاسو کې ډېر عزتمند ستاسو ډېر پرهېزګار دی".

او فرمايي:

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ يَسْخَرْ قَومٌ مِّن قَوْمٍ عَسَى أَن يَكُونُوا خَيْرًا مِّنهُمْ "[1]

" ای مؤمنانو! يو قوم دې پر بل قوم باندې ملنډې نه وهي؛ کېدی شي، چې هغوی له دوی غوره وي ".

او رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: " ليس منا من دعىٰ إلی عصبية "[2]

"چا چې د نسلي ريښې ړندې پلوۍ ته بلنه ورکړه؛ هغه له مونږ څخه نه دی".

همدا رنګه د يو مهاجر او انصاري تر منځ څه شخړه راغله؛ مهاجرمهاجرينو ته غږ وکړ او انصاري انصاروته؛ کله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم واورېدل، نو ويې فرمايل:

"دعوها فانها منتنة" و في رواية: " خبيثة"[3]

"دا بلنه پرېږدئ ځکه، چې دا ډېره بدبويه ده" په يو روايت کې راځي، چې "پليته ده" نو د قوم او خېل تعصب په اسلام کې دومره بدګڼل کېږي، چې بدبويه وبلل شو.

---

[1] - سورة الحجرات: ١١.
[2] - رواه أبوداود.
[3] - رواه البخاري ومسلم و احمد وابن حبان والبيهقي.

په اسلام کې قرشي ابوبکر او عمر، فارسي سلمان، حبشي بلال او رومي صهيب په يو صف کې بې توپيره ودرېدل، تور حبشي بلال دنبوي جومات مؤذن ؤ، د خندق په غزوه کې خندق (کنده) کنستل د فارسي سلمان په مشوره شوي وو.

نو له همدې امله، چې په اسلام کې د قوم، ژبې، رنګ او نسل تعصب نۀ ؤ ، دا د عربي پېغمبر او عربي قرآن له امله يوائې د عربو دين نه ؤ، بلکه دا عربي قرآن د ټول انسانيت د هدايت کتاب دی او دا عربي پېغمبر ټولې نړۍ ته رالېږل شوی دی؛ اسلام د نړۍ ګوټ، ګوټ ته ورسېد او هر چا چې اسلام قبول کړ؛ هغه دا محسوسه نه کړه، چې ما د کوم ځانګړي قوم پردی دين ومانه، بلکه هغه چې د اسلام په سم مفهوم پوه شو او د اسلام فطرت او طبيعت يې وپېژند، نو دايې محسوسه کړه، چې دا زما دين دی اوزه د الله له لوري د دې دين په منلو مکلف يم؛ که دا ټوله نړۍ يې ونه مني؛ زه به يې هرو مرو منم او سرغړونه به ترې نه کوم.

د اسلام د دې شموليت او وسعت په برکت د اسلامي امت په عجمو کې داسې علماء او پوهان پيدا شول، چې په دې دين له ډېرو عربو ښه وپوهېدل او دې دين ته يې له عربو زيات خدمت وکړ.

د حديثو د مشهوروکتابونو مصنفين، او زيات محدثين، مفسرين فقهاء او علماء په عجمو کې پيدا شوي دي.

إمام ابوعبدالله محمدبن اسماعيل بخاري، امام مسلم قشيري، امام ابوعيسی ترمذی، امام ابوداود سجستاني امام ابو حاتم افغاني.

اونور بې شمېره علماء عجم وو. او دا له همدې امله، چې اسلام نړيوال او دانسانيت دين دی او دګردو انسانانو او پېريانو، بلکه د ګردې نړۍ د نېمکرغۍ لپاره راغلی دی.

الله تعالی فرمايي:

"وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلاّ رَحْمَةً لِّلْعَالَمِينَ"[1]

"او مونږ ته د ټولو خلکو لپاره رحمت لېږلی يې".

په (عالمين) کې ټول انسانان داخل دي، بلکه نور مخلوقات هم د (عالمين) په معنی کې داخل دي، ځکه چې هر جنس يو عالم دی لکه: عالم الانس، عالم الجن، عالم الملائکه، عالم الطيور، عالم النبات، عالم الجماد او داسې نور.

## د اسلام سياسي نظام

د اسلام له محاسنو او ښېګړو څخه يوه لويه ښېګړه دا ده، چې د انساني ټولنې د ودانۍ، ښېرازۍ، خوشحالۍ او نېکمرغۍ لپاره يې انسانانو ته يو بشپړ سياسي نظام ټاکلی دی. په اسلام کې نه پاچايي نظام شته، چې يو ټولواک پاچا به وي او د هغه په کورنۍ کې به د پاچايي ميراث روان وي. اونه هغه بې توله جمهوري نظام دی، چې د بې توله اکثريت په بنسټ به چارواکي ټاکل کېږي، د خلکو وخت پرې ضايع کېږي، د دروغو وعدې او ناروا مقابلې

[1]- سورة الانبياء:۱۰۷.

پکې کېږي، غلو اودرغلګرو ته د ولس واک ورکول کېږي...........
په اسلام کې به پرهېزګاران،دیانتدار، هوښیاران او پاکان خلک د شوریٰ په بنسټ یو پوه، هوښیار، پرهېزګار، روغ، پیاوړی، مېړنی،د سپېڅلیو خویونو خاوند، نارینه، زړور، خواخوږی او امانتدار خلیفه ټاکي او هغه به تر هغه خلیفه وي، تر څو چې غښتلې اداره ولري، د اسلام دعدل پر بنسټونو، عقېدې او نېک عمل ولاړ وي، داسې کوم عیب او ناروغي پکې نه وي پیدا شوې، چې د حکومت کولو قابل نه وي او د اسلام احکام یې پوره کره پلي کړي وي.......

که ګهیځ ټاکل شوی وي او ماښام پکې کوم عیب او د عزل شرط پیدا شو؛ بیا هیڅ وخت نه ورکول کېږي او سم له لاسه معزولېږي. په اسلام کې د حکومت چارواکی اوخلیفه له نورو زیات حق او إمتیاز نه لري او د اسلامي نظام په بیت المال کې یې له نورو زیاته ونډه نشته، په اسلام کې امیر او مامور یو ډول انسانان او مسلمانان دي، دا نه ده چې ګنې أمیر او خلیفه په کومه لاره ځي، نو ټول سړکونه او لارې د نورو خلکو پر مخ تړل کېږي، مخکې وروسته ترې ګاډي روان وي، خلک ورسره ملاقات نه شي کولي او د تکبر اواستبداد یوه ناوړه بېلګه وي....

د اسلام خلیفه به د وړو خېټې مړوي، یتیم، کونډې او بې وزلي سره به مرسته کوي، د دردمند او مظلوم اوښکې به پاکوي او حق به یې ورکوي، د ظلم مخنیوی به کوي، بې کوره ته به کور ورکوي، بې ځمکې ته به ځمکه ورکوي، بربنډ به پټوي، د

محتاجانو اړتیاوې به پوره کوي، د پوروړي پور به لنډوي، لنډه دا چې دخپل ولس د وګړو بادار نه بلکه داسې خدمتګار به وي، چې د هغوی اقتصادي، سیاسي، ټولنیز، فرهنګي اونور ټول حقونه به پوره کره ورکوي اوخوندي به یې ساتي، د هرچا پت، عزت، عفت، عصمت، او د صورت اوسیرت سره تړلي ټول معاني او مباني به خوندي او مأمون وي. خلیفه به د دین، وطن، نوامیسو، ویاړونو او ارزښتونو ویښ او پیاوړی څوکیدار وي، تل به د خپل رعیت او ولس د خوښۍ، خوشحالۍ او ښېرازۍ لپاره د پخو او پیاوړیو سرشتو په لټون کې وي، له خپلو مامورینو او چارواکونه به خبر وي او د هر ډول اداري فساد، رشوت، بې غورۍ، بې باکۍ او کاواکۍ مخنیوی به کوي، د دښمنانو له پلمو به خبر وي اومخه به یې نیسي، د خپل ولس وګړو پسې به نوغي او جاسوسان نه لېږي، د وګړو د صحت، ښوونې او روزنې (تعلیم او تربیې)، امنیت، ټولنېز عدالت او پرمختګ لپاره به پخې عملي سرشتې او تدبیرونه نیسي، حکومت، بیت المال او واکمني به خپل شخصي ملکیت نه ګڼي بلکه دابه یو داسې امانت ګڼي، چې هیڅ ډول درغلي به پکې نه کوي او فضیلت او امتیاز نه بلکه مسؤلیت او فریضه به یې ګڼي او دولس په مخکې به تل محاسبې، نیوکو او سزا ته تیار وي. د اسلام ټول احکام په حاکم او محکوم، امیر او مامور، خلیفه او رعیت یو ډول پلي اونافذ وي او حاکم، امیر او خلیفه له رعیت نه په هیڅ ډول مستثنا نه دی بلکه مسؤلیت، فرائض او ذمه واري او ستړیا یې له ټولو زیاته ده. د اسلام حاکم د خپلو وګړو بادار او

پاچانه بلکه د ټولو خواخوږی، غمخور، لوروونکی او مهربان خدمتګار دی، په اسلامي خلافت کې د حکومت هر چارواکی، مامور، څارندوی، پولیس، عسکر او بل.... د ډاډ او اطمینان نښه ده، د ډار اندېښنې او اضطرار نښه نه ده.

په اسلام کې نه پاسپورټ شته، نه وېزه او نه بندیز؛ هر انسان داحق لري، چې دنړۍ هر ګوټ ته بې له کوم بندیز لاړ شي او هر ځای کې چې اوسېږي هلته پردی نه دی. په اسلام کې دا ګرده نړۍ اودا ټوله ځمکه د یو کور حیثیت لري او دا ټول انسانان د دې یو کور غړي دي، چاچې د نړۍ په هر ګوټ کې شاړه ودانه کړه هغه د همغه ده. دا ټول خلک د ځمکې په زېرمو (معدنونو)، تېلو، ځنګلونو، اوبو، او شاړو کې سره شریک دي. د اسلام په حکومت کې ټولې شخړې او لانجې د عدالت او انصاف په بنسټونوله منځه ځي او فیصله کېږي او انصاف د هر چا کورته وړیا رسول کېږي، له ظالم نه د مظلوم حق اخیستل کېږي. او دا د اسلامي حکومت دنده، مسؤلیت اوفریضه ده، چې خلکو ته به وړیا انصاف برابروي او په پرېکړو او حق اخیستلو کې په هیچا کوم فیس، ټکس او اجوره نشته. ترڅو چې د دوه مخالفو تر منځ حق نه وي څرګند شوی؛ اسلام قاضي ته وایي، چې په سترګي مه شي، خبرو، د ناستې په ځای او نورو کې به دواړوته یو ډول او په یوه سترګه ګوري او هیڅ توپیر به پکې نه کوي، د پړ وړ له معلومېدونه مخکې که په دوه لانجه مارو او مخالفو طرفونو کې یو کس په ښه او بل په نا ښه ځای کې کېنول شي؛ اسلام دا ظلم بولي او قاضي ته هېځکله د دې

اجازه نه ورکوي. په اسلام کې د وضعي قوانينو په څېر ځنډول، په ناروا وکيلانو دفاع او کړول نشته. اسلام قاضي ته حکم کوي، چې تر خپله وسه په لومړي فرصت کې کره پوره پلټنه وکړي، حق معلوم کړي او حقدار ته يې ورېيا ور وسپاري، پړ ته پړ او و ړته وړ وواييي او مجرم په خپلې سزا ورسوي.

اسلام لومړی د هر چا د خېټې، کور او نورې اړتيا وې ورپوره کوي، له بيت المال نه هر چاته خپل حق ورکوي، د ځمکې تېلو، معدنونو او نورو په زېرمو کې هر چاته خپله مساوي برخه ورکوي، د ځمکې د ودانولو لپاره بشپړه ازادي ورکوي، ټګي، برګي، غولونې او نورې ناروا او انسانانو ته د زيان رسولو لارې بندوي، د واده کول اسانوي، د سختو ناوړو او خرافي دودونو مخنيوی کوي او د ټولو حقونو له پوره ورکولو نه وروسته بيا غل، زناکار او نورو مجرمانو ته سزا ورکوي. که د اسلام د عدل، انصاف، اقتصاد او نور ټول احکام او قوانين بشپړ نا فذ نه شي، نو يواځې سزا ورکول او نېمګړي قوانين نافذول له اسلام سره جفا او ظلم دی. که چېرته پوره اسلامي نظام نافذ شي؛ هيڅ ډول جرم به ونه شي اود هيڅ ډول حدودو نافذولو ته به کومه اړتيا پاتې نه شي.

اسلام سراسر د عدل او انصاف په پخو بنسټونو ولاړ دی او خپلو منونکيو ته تل د عدل او انصاف کولو امر کوي. الله تعالی فرمايي:

"إِنَّ اللهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَى وَيَنهى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ" ۱

"الله بې شکه په عدل، ښېګړې او خپلوانو ته په ورکړې امر کوي او له بې شرمه کارونو، ګناهونو او سرکشۍ نه منع کوي او تاسو ته د دې لپاره نصيحت کوي، چې پند واخلئ".

او فرمايي:

"إِنَّ اللهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤدُّواْ الأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا وَإِذَا حَكَمْتُم بَيْنَ النَّاسِ أَن تَحْكُمُواْ بِالْعَدْلِ إِنَّ اللهَ نِعِمَّا يَعِظُكُم بِهِ إِنَّ اللهَ كَانَ سَمِيعًا بَصِيرًا" ۲

"الله بې شکه په دې امر کوي، چې امانتونه خپل اهل ته وسپارئ او کله مو چې د خلکو په منځ کې پرېکړې کولې؛ په انصاف پرېکړې وکړئ. الله په دې تاسو ته ښه نصيحت کوي. الله بې شکه ښه اورېدونکی او ښه ليدونکی دی".

همدارنګه اسلام مونږ ته امر کوي، چې تل په انصاف او عدل ټينګ ولاړ او سوو او که د خپل ځان، مور او پلار يا خپلوانو په خلاف هم وي؛ بايد د حق پلوي او د حق ګواهي وکړو.

الله تعالی فرمايي:

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ كُونُواْ قَوَّامِينَ بِالْقِسْطِ شُهَدَاءَ لِلهِ وَلَوْ عَلَى أَنفُسِكُمْ أَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالأَقْرَبِينَ "۳

---

[1]- سورة النحل: ۹۰.
[2]- سورة النساء: ۵۸.
[3]- سورة النساء: ۱۳۵.

"ای مؤمنانو! په انصاف ټينګ ولاړ اوسئ. او اګر که ستاسو دځانونو يا مور او پلار او خپلوانو په خلاف هم وي؛ د الله لپاره ګواهان اوسئ».

وګورئ د اسلام عدل او نصاف ته، چې خپلو پيروانو او منونکيو ته وايي، چې د نفسي غوښتنو په ځای د حق پلوي وکړئ. او که ستاسو د ځانونو او يا ډېر وګرانو او نږدې خپلوانو په خلاف هم وي؛ الله لپاره د ريښتيا او حق ګواهان جوړ شئ.

او دا لا څه چې اسلام خپلو منونکيو ته حکم کوي، چې له دښمن سره دښمني دې هم ددې باعث او لامل نه شي، چې تاسو انصاف او عدل پرېږدئ، بلکه د دښمن په هکله به هم د عدل او انصاف لمن نه پرېږدئ. الله تعالی فرمايي:

" يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ كُونُواْ قَوَّامِينَ لله شُهَدَاء بِالْقِسْطِ وَلاَ يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَى أَلاَّ تَعْدِلُواْ إعْدِلُواْ هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى وَاتَّقُواْ الله إِنَّ الله خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ "[1]

" ای مؤمنانو! تاسو الله لپاره په انصاف ټينګ ولاړ ګواهان شئ او د چا دښمني دې په تاسو د دې لامل نه شي، چې عدل ونه کړئ، بلکه عدل وکړئ، چې دا پرهېزګارۍ ته ډېره نږدې ده او الله نه ځانونه وژغورئ. الله په هغو کارونو بې شکه ښه خبر دی، چې تاسو يې کوئ ".

دې ته وايي عدل، دې ته وايي انصاف، چې له دښمن سره به هم عدل کوې او له دښمن سره دښمني به د دې باعث او لامل نه

[1]- سورة المائدة: ٨.

جوړېږي، چې مونږ عدل ونه کړو. اوس چې هم څوک د اسلام په عدالت او انصاف سترګې پټوي، نو هغه د عدل او انصاف له بريده تېرېږي؛ ظلم او بې انصافي کوي او کينه، ضد او عناد کوي.

او الله تعالی فرمايي:

" وَإِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُواْ وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَى" ۱

"او که د خپلوانو په هکله مو هم وي؛ خو کله مو چې وينا کوله، نو انصاف کوئ".

او فرمايي:

"لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ" ۲

"مونږ بې شکه خپل پېغمبران له څرګندو دليلونوسره د دې لپاره لېږلي او کتاب او تله مو ورسره لېږلې ده، چې خلک په انصاف ودرېږي".

او فرمايي:

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَقُولُوا قَولاً سَدِيداً" ۳

"اې مؤمنانو! له الله نه ووېرېږئ او سمه د انصاف وينا کوئ".

---

[1] - سورة الانعام: ۱۵۲.

[2] - سورة الحديد: ۲۵.

[3] - سورة الاحزاب: ۷۰.

# د عدالت نظام

اسلام ټول د عدالت، ښېګړې، او محاسنو نظام دی او تل په عدل او انصاف حکم کوي.

تر دې، چې اسلام د غوسې په وخت کې قاضي او حاکم ته د دې اجازه نه ورکوي، چې پرېکړه وکړي او دا ځکه، هسې نه چې د غوسې له امله په کوم لوري ظلم وکړي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبي بکرة قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "لايقضين حکم بين اثنين وهو غضبان"[۱]

له ابو بکره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: "کوم قاضي او منځګړی دې ددوه کسانو تر منځ په داسې حال کې پرېکړه نه کوي، چې هغه په غوسه وي".

په بل حديث کې د عدل او عدالت په هکله داسې راځي:

عن عبدالله بن عمرو بن العاص قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "إن المقسطين عندالله على منابر من نور عن يمين الرحمن وكلتا يديه يمين، الذين يعدلون فى حکمهم و أهليهم وما ولوا".[۲]

[۱]- رواه البخاری ومسلم.
[۲]- رواه مسلم.

له عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: " هغه عادلان چې په خپلو پرېکړو، خپلو کورونو او خپلو دندو کې عدل او انصاف کوي، هغوی به له رحمٰن ذات: الله سره په ښي لور کې د نور په منبرونو ناست وي، او د الله دواړه لاسونه ښي دي".

په بل حديث کې داسې راځي :

عن عائشة قالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "اللهم من ولى من أمر أمتى شيئا فشق عليهم فاشقق عليه ومن ولى من أمر أمتى شيئا فرفق بهم فارفق به".[1]

له عائشې رضی الله عنها نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "ای الله څوک چې زما د امت په کوم کار وټاکل شو او په هغوی يې سختي وکړه، نو ته پرې سختي وکړې. او څوک چې زما د امت په کوم کار وگمارل شو او نرمي يې ورسره وکړه، نو ته پرې نرمي وکړې".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن عائذبن عمرو قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "إن شرالرعاء الحطمة".[2]

له عائذبن عمرورضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: " په حاکمانو کې تر ټول بد حاکم ظالم خېټور دی".

---

[1]- رواه مسلم.
[2]- رواه مسلم.

همدارنګه د ظالمانو حاکمانو په هکله په بل حديث کې داسې راغلي دي:

عن هشام بن حکيم قال: أشهد لسمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: " إن الله يعذب الذين يعذبون الناس فی الدنيا" ۱

له هشام بن حکيم رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: زه ګواهي کوم،چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: "الله تعالى هغه خلک په عذابوي، چې په دنيا کې خلک په عذابوي".

په بل حديث کې د ظالمانو پوليسانو او پوځيانو په هکله داسې راغلي دي:

عن أبی هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "يوشك إن طالت بك مدة أن ترى قوما فی أيديهم مثل أذناب البقر يغدون فی غضب الله ويروحون فی سخط الله"۲

له ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "که زمانه درباندې اوږده شوه، نو نږدې ده؛ داسې خلک به وګورې، چې په لاسونو کې به يې د غويانو د لکيو غوندې شيان وي، سهار به د الله په غوسې کې ځي او بېګاته به د الله په غوسې کې راځي".

په بل حديث کې داسې راځي:

---

[1] - رواه مسلم.
[2] - رواه مسلم.

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "صنفان من أهل النار لم أرهما: قوم معهم سياط كأذناب البقر يضربون بها الناس ونساء كاسيات عاريات، مميلات مائلات رؤسهن كأسنمة البخت المائلة لا يدخلن الجنة ولايجدن ريحها" [1]

له ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " دوه ډوله دوزخيان دي، چې مالا نه دي ليدلي: يو هغه خلک دي، چې د غويانو دلکيو غوندې قمچينې به ورسره وي او خلک به پرې وهي، بل داسې ښځې دي، چې جامې به لري خو بربنډې به وي، راجبلوونکې او نورو ته کږېدونکې به وي، سرونه به يې د ماهي اوښانو د کږو بوکانونو غوندې وي، نه به جنت ته ننوځي او نه به يې بوی ومومي".

## د اسلام خواخوږی حکومت

په اسلام کې حکومت درعيت د امن او سوکالۍ لپاره وي او د ټولو خلکو حقوق پکې خوندي وي، که څوک ومري، نو مال يې د خپلو وارثانو دی. که کوم تنګلاسی پوروړی ومري او مال او وارثان ونه لري، نو د اسلامي حکومت دنده ده، چې پور به يې لنډوي.

په حديث کې داسې راځي:

[1] - رواه مسلم.

عن أبي هريرة أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "أنا أولى بالمؤمنين من أنفسهم، فمن توفى من المؤمنين فترك دينا فعليّ قضاءه ومن ترك مالا فلورثته".[1]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: " زه د مؤمنانو له خپلو ځانونو څخه دهغوی زیات حقداریم، په مؤمنانو کې چې څوک ومري او پور پرې پاتې وي، نو لنډول يې پرما دي او چاچې مال پرې ایښی وي، نو هغه يې د خپلو وارثانو دی".

سبحان الله! څومره خواخوږی دین! او څومره مهربان پېغمبر! دا د اسلام عدالت دی ، دا د اسلام خواخوږي ده او دا د اسلام د ښېګړې نظام اود سوکالۍ حکومت دی.

## د امیر طاعت

په اسلام کې د نېک او عادل حاکم او امیر طاعت فرض دی؛ خو د ټولې نړۍ لپاره یو خلیفه دی. دا اوسني تنګ سیاسي بریدونه او دا ګڼ حکومتونه په اسلام کې نشته. کله چې یو خلیفه او یو خلافت وي، نو بیا په نېکو کارونو کې د امیر طاعت فرض دی.

په حدیث کې داسې راځي:

[1] ـ رواه البخاري ومسلم و ابوداؤد.

عن أم الحصين قالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :
"إن أمر عليكم عبد مجدع يقودكم بكتاب الله فاسمعوا له و أطيعو" [1]

أم حصين رضى الله عنها نه روايت دى هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "که په تاسو پيت پوزى غلام امير وټاکل شو او د الله په کتاب يې درباندې حکومت کاوه، نو د هغه واورئ او طاعت يې وکړئ".

په بل حديث کې داسې راځي :

عن أنس أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: " إسمعوا وأطيعوا وإن استعمل عليكم عبد حبشي كأن رأسه زبيبة". [2]

له انس رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "اګر که په تاسو داسې حبشي غلام وټاکل شي، چې سر يې لکه دمميز د دانې غوندې وړوکى وي؛ هم وايې ورئ او طاعت يې وکړئ".

خوپه ظلم او ناوړه کار کې بيا دامير منل نه بلکه نه منل يې فرض دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن على قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لا طاعة فى معصية إنما الطاعة فى المعروف". [3]

---

[1] - رواه مسلم.
[2] - رواه البخارى.
[3] - رواه البخارى ومسلم.

له علی رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: "په ګناه کې د امير طاعت نشته؛ طاعت يوائې په ښو کارونو کې دی".

## د ظالم حاکم په مخکې د حق خبره

په اسلام کې حاکم او محکوم، خليفه او رعيت سره برابر دي او حاکم داسې کوم سپېڅلی ذات نه دی، چې هيڅ ترې نه پوښتل کېږي او که زياتی کوي، نو مخنيوی يې نه کېږي.

په حديث کې راځي:

عن ابي سعيد قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم: "أفضل الجهاد من قال كلمة حق عند سلطان جائر".[1]

له ابو سعيدرضي الله عنه نه روايت دی هغه وايې، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: " تر ټولو غوره جهاد دا دی، چې څوک د ظالم حاکم په مخکې د حق خبره وکړي".

[1]- رواه الترمذي و ابوداود والنسائی وابن ماجه واحمد.

## په رعيت باندې بشپړ باور

اسلام حاکم ته حکم کوي، چې په خپل رعيت بې ځايه بدګماني ونه کړي، بې دليله څوک مجرم ونه ګڼي اورعيت پسې جاسوسان ونه ټاکي . په حديث کې داسې راځي:

عن أبي أمامة عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "إن الأمير إذا ابتغى الريبة فى الناس أفسدهم".[1]

له ابو امامه رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پيغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې هغه وفرمايل: "امير چې کله په خلکو کې شک ولټاوه، نو هغوی يې فاسد کړل".

نو د رعيت پسې جاسوسان لېږل او پۀ هغوی شک کول روانه دي. مجرم هله مجرم ګڼل کېږي، چې څه دليل او ګواهان پرې وي؛ بې ځايه شک کول خلک فاسدوي.

په بل حديث کې داسې راځي:

عن معاوية قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "إنك إذا اتبعت عورات الناس أفسدتهم".[2]

له معاويه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: "کله چې دخلکو پټو رازونو پسې شوې، نو هغوی دې فاسد کړل".

---

[1]- رواه ابوداؤد.
[2]- رواه البيهقى.

او دا ځکه، چې له يوه پلوه هغوی په ضد کې راځي، له بله پلوه يې په لوی لاس جرمونو ته پام اړول کېږي او بله دا چې د حاکم او رعيت تر منځ بې باوري او بې اعتما دي پيدا کوي.

## رشوت (بډې) اخيستل

په اسلام کې د رشوت ورکول او اخيستل دواړه حرام دي؛ اسلام د عدل او انصاف نظام پلی کوي او د رشوت او اداري فساد په کلکه مخنيوی کوي.

الله تعالی فرمايي:

"وَلاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُواْ بها إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُواْ فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ".[1]

"په خپلو منځو کې خپل مالونه په باطله مه خورئ او حاکمانو ته يې د دې لپاره مه وړاندې کوئ، چې ښه پوهېږئ او د خلکو څه مالونه په ناروا وخورئ".

او په حديث کې داسې راځي:

عن عبدالله بن عمرو قال: "لعن رسول الله صلى الله عليه وسلم الراشي والمرتشى".[2]

---

[1] - سورة البقرة: ۱۸۸.
[2] - رواه الترمذى و ابوداود وابن ماجه و احمد والبيهقى.

له عبد الله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم په بډو ورکوونکي او بډو اخيستونکي دواړو لعنت ويلی دی".

## ظلم

اسلام د هر ډول ظلم مخنيوی کوي، غندي يې او په کلکه ترې منع کوي. ظلم تېري کولو ته ويل کېږي. تر ټولو لوی ظلم د الله تعالی په حق کې ظلم دی، چې هغه جل جلاله نه انکار، د هغه په ذات، عبادت او صفاتو کې شريک پيدا کول او دهغه په ځمکه د هغه جل جلاله له دين پرته بل قانون پلی کول دي.....

اسلام له ظالمانو سره ملګرتيااو لږ غوندې ميلان هم سخت بدګڼي الله تعالی فرمايي:

"وَلَا تَرْكَنُوا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ". [1]

"او دظالمانو لورته لږ هم مه کږېږئ، چې اور به درته در ورسېږي او تاسو لپاره به له الله پرته څوک دوستان نه وي او بيا به درسره مرسته ونه شي".

او الله تعالی فرمايي:

[1]- سورة هود: ۱۱۳.

"والله لا يحب الظالمين". ۱

"او الله ظالمان نه خوښوي".

او فرمايي:

"وَإِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ". ۲

"او ظالمانو لپاره بې شکه دردناک عذاب دی".

او فرمايي:

"أَلَا إِنَّ الظَّالِمِينَ فِي عَذَابٍ مُّقِيمٍ". ۳

"خبردار! ظالمان به بې شکه په پاتې کېدونکي عذاب کې وي".

اسلام دظلم او تېري ټول ډوله ناروا ګڼي، په کلکه يې مخنيوی کوي او له عواقبو يې خلک وېروي. په حديث کې راځي:

عن ابن عمر أن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "الظلم ظلمات يوم القيامة". ۴

له عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دی، چې پېغمبر صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "ظلم د قيامت په ورځ تيارې دي".

په بل حديث کې د ظلم په هکله داسې راځي:

عن أبى موسىٰ قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "إن الله ليملى الظالم حتى إذا أخذه لم يفلته" ثم قرأ " و كذلك أخذ ربك إذا أخذ القرى وهى ظالمة ". الآية. ۵

---

[1]- سورع آل عمران.

[2]- سورة الشورى: ۲۱.

[3]- سورة الشورى: ٤٥.

[4]- رواه البخارى ومسلم.

[5]- رواه البخارى ومسلم.

له ابو موسى رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "الله سبحانه وتعالى ظالم ته تر هغې مهلت ورکوي، تر څو چې کله يې ونيسي، نو هيڅ يې پرې نه ږدي". بيا يې دا ايت ولوست: "ستاد رب نيول همداسې دي، چې کله کلي ونيسي او هغه ظالمان وي".... تر اخره.

د ظالم او مظلوم په هکله بل حديث داسې راځي:

عن أنس قال: قال رسول صلى الله عليه وسلم: "أنصر أخاك ظالما أو مظلوما". قال: يارسول الله! هذا ننصره مظلوما فكيف ننصره ظالما؟! قال: " تمنعه من الظلم فذاك نصرك إياه". و فى رواية: " تأخذ فوق يديه".[1]

له انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " له خپل وروره مرسته وکړه، چې ظالم وي او که مظلوم وي" هغه وويل: ای د الله پيغمبره ! له دې يو سره خوبه ځکه مرسته کوو، چې مظلوم دی، نو له ظالم سره څرنګه مرسته وکړو؟! هغه وفرمايل: " ظالم له ظلم نه منع کړه، نو دا له هغه سره ستا مرسته ده". او په يو روايت کې راځي، چې "لاسونه يې ونيسه".

نو د ظالم مخنيوی او له ظلم نه د هغه لاس لنډول، له هغه سره مرسته ده، ځکه چې له دنيوي او اخروي سپکاوي او عذاب نه يې راګرځول دي.

---

[1]- رواه البخارى ومسلم.

په بل حديث کې ظالم ته حکم کوي، چې زرتر زره د مظلوم حق وروسپاري او ځان له عذابه وژغوري:

عن ابی هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " من كانت له مظلمة لأخيه من عرضه أو شئ فليتحلله منه اليوم قبل أن لايكون دينار ولا درهم، إن كان له عمل صالح أخذ منه بقدر مظلمته و إن لم تكن له حسنات أخذ من سيئات صاحبه فحمل عليه". [١]

له ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "چا باندې چې د خپل ورور د پت يا د بل کوم شي د ظلم پور وي، نو نن دې ورڅخه له دې مخکې ځان خلاص کړي، چې بيا به د قيامت په ورځ نه دينار وي او نه درهم که نېک عمل يې وي، نو د ظلم په اندازه به ورڅخه واخيستل شي او که نېکۍ يې نه وي، نو د مظلوم څه ګناوې به را واخيستل شي او په ده به بار شي".

په بل حديث کې د حقوقو د ورکولو او د ظلم نه کولو په هکله داسې راځي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "لتؤدن الحقوق إلى أهلها يوم القيامة حتى يقاد للشاة الجلحاء من الشاة القرناء". [٢]

---

[١]- رواه البخارى.

[٢]- رواه مسلم.

له ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " د قيامت په ورځ به خامخا حقوق خپلو خاوندانو ته سپارئ، تر دې چې له ښکرور ځاروي نه به د کونډي ځاروي لپاره غچ اخيستل کېږي".۱

په بل حديث کې دهغه چا په هکله راغلي، چې څه نېکۍ يې هم کړې وي؛ خو په خلکو باندې تېري او ظلمونه يې له نېکيو ډېر وي، نو له پرېکړې نه وروسته هيڅ هم ورته پاتې نه شي.

عن أبی هريرة أن رسول الله صلی الله عليه وسلم قال: "أتدرون ماالمفلس؟ " قالوا: المفلس فينا من لادرهم له ولا متاع. فقال: "إن المفلس من أمتی من يأتی يوم القيامة بصلاة وصيام و زكاة و يأتي قدشتم هذا و قذف هذا وأكل مال هذا و سفك دم هذا وضرب هذا فيعطی هذا من حسناته و هذا من حسناته فإن فنيت حسناته قبل أن يقضٰی ما عليه أُخذ من خطاياهم فطرحت عليه ثم طرح فی النار".۲

له ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "آيا تاسو پوهېږئ، چې لېنګ څوک دی؟". صحابه ؤ وويل: په مونږ کې لېنګ هغه څوک دی، چې نه پيسې لري او نه سامان. هغه وفرمايل: " زما په امت کې مفلس هغه څوک دی، چې د قيامت په ورځ به له ځان سره لمونځونه، روژې او زکاتونه راوړي او رابه شي؛ خو دې يوته يې کنځل کړي دي، دې بل

[1]- کونډی: بې ښکرو. غچ: انتقام.
[2]- رواه مسلم.

باندي يې تور لګولی دی، د دې بل مال يې خوړلی دی، د دې بل وينه يې توی کړې ده او دا بل يې وهلی دی. نو دې يو ته به يې له نېکيو څه ورکول شي او دې بل ته به يې له نېکيو څه ورکول شي، تر دې، چې که مخکې له دې يې نېکۍ خلاصې شوې، چې په هغه ځومره حقوق دي، هغه خلاص شي، نو د هغوی څه ګناوې به راواخېستل شي، په ده به واچول شي اوبيا به په اورکې وغورځول شي".

په بل حديث کې د ظلم د نه کولو په هکله داسې راځي:

عن حذيفة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لا تكونوا إمعة تقولون إن أحسن الناس أحسنا و إن ظلموا ظلمنا ولكن وطنوا أنفسكم إن أحسن الناس أن تحسنوا و إن أساءوا فلا تظلموا".[۱]

له حذيفه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " تاسو مير ځمن مه کېږئ، چې وايئ: که خلکو ښه کول؛ مونږ به هم ښه کوو او که هغوی ظلم کاوه، نو مونږ به هم ظلم کوو. بلکه خپل ځانونه په دې روږدي کړئ، چې که خلکو ښه کول، نو تاسو به ښه کوئ او که خلکو بد کول، نو تاسو به ظلم نه کوئ".

په بل حديث کې د ظالم ملګر تيا له اسلامه وتل ګڼل شوي دي:

---

[۱]- رواه الترمذی.

عن أوس بن شرحبيل أنه سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "من مشى مع ظالم ليقويه وهو يعلم أنه ظالم فقد خرج من الإسلام"[۱]

له اوس بن شرحبيل رضي الله عنه نه روايت دی، هغه له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي چې فرمايل يې: "څوک چې د دې لپاره له ظالم سره لاړ، چې غښتلی يې کړي او هغه ښه پوهېده، چې هغه ظالم دی، نو هغه بې شکه له اسلام نه ووانه".

رسول الله صلى الله عليه وسلم به خپل استازي هم له ظلم نه منع کول؛لکه چې په حديث کې داسې راغلي:

عن ابن عباس أن النبى صلى الله عليه وسلم بعث معاذا إلى اليمن فقال: "إتق دعوة المظلوم فإنه ليس بينها و بين الله حجاب".[۲]

له عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دی، چې پېغمبر صلى الله عليه وسلم چې کله معاذ رضي الله عنه يمن ته لېږه، نو ورته ويې فرمايل: "دمظلوم له ښېرو ځان وساته ځکه چې د هغه او د الله تر منځ پرده نشته".

په بل روايت کې داسې راغلي:

عن على قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "إياك و دعوة المظلوم فإنما يسأل الله تعالى حقه و إن الله لا يمنع ذا حق حقه"[۳]

[۱]- رواه البيقهي فى شعب الايمان.
[۲]- رواه البخارى و مسلم و ابوداود و الترمذى وابن ماجه والنسائى والدارمي و ابن خزيمة.
[۳]- رواه البيهقى فى شعب الايمان.

له علي رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: "پام کوه ځان د مظلوم له ښېرو وساته ځکه چې هغه له الله تعالی نه خپل حق غواړي او الله دحق له خاوند نه د هغه حق نه منع کوي".

د مظلوم له ښېرو د ځان ساتلو معنی دا ده، چې ظلم مه کوه ځکه چې مظلوم په ظلم کولو پيدا کېږي او چې ظلم ونه شي، نو نه به مظلوم وي او نه به يې ښېرې.

## د اسلام اقتصادي نظام

اسلام نړيوالوته داسې دعدل، انصاف، ښېرازۍ، ودانۍ او خوشحالۍ اقتصادي نظام ټاکلی دی، چې هر چاته يې خپل حق ورکړی دی، د هر ډول تېري، ظلم، تګۍ، غولونې او مجهولو معاملو مخه يې نيولې ده. په اسلام کې نه شرقي اشتراکي نظام دی، چې له انسان څخه شخصي ملکيت بېخي غصبوي، دځو چارواکو په لاس کې يې ورکوي او له انسان څخه هغه اس او خر جوړوي، چې په کار او بار ستړی کېږي او ګټه يې د خاوند وي، هغه ته کور، کالي ډوډۍ (اخور، ځل او واښه) ورکوي.....

او نه پکې غربي پنګه وال نظام دی، چې د شخصي ملکيت داسې بې باکه او کاواکه بازار ته اجازه ورکوي، چې په نتيجه کې يې څوک له ولږې مري او د چا ارګی له ډېرو خوړلو له امله بد وي،

د چابې خرته او بې بريده پانګه په بانکونوکې نه ځايېږی او ځوک بېګاته ډوډۍ نه لري!!!.....

بلکه په اسلام کې شخصي ملکيت ته اجازه ورکول شوې ده؛ خو څه بريدونه يې ورته ټاکلي دي، چې له هغو به نه اوړي، په دې سربېره يې په نغدو، حيواناتو او د ځمکې په غلو دانو د زکات حق ايښی دی او نصابونه يې ورته ټاکلي دي، چې له بډايانو اخيستل کېږي اوپه بې وزلو وېشل کېږي. د بې وزلو، يتيمانو، کونډو، محتاجانو، ګونډيانو، مېلمنو، خپلوانو اونورو حقوق په اسلام کې په ګوته شوي او ټاکل شوي دي.....

د اسلام اقتصادي نظام هغه د انصاف او عدالت نظام دی، چې تفصيل يې په ځانګړيو کتابونو کې ليکل شوی دی.

که چېرته د اسلام اقتصادي نظام بشپړ پلی اونافذ شي، نو له ګردې نړۍ نه به بې وزلي، محتاجي، فقر او ناانډولي له منځه لاړه شي او ټول وګړي به داسې د خوشحالۍ، سوکالۍ، ودانۍ، ښېرازۍ او خوشحالۍ ژوند ولري، چې بې وزلی او محتاج به پکې نه وي او ټول جرمونه او ظلمونه به ړنګ او له منځه لاړ شي.

د اسلام بانکي نظام د مضاربت په تجارتي بنسټ ولاړ دی، چې پانګه د څښتن او د بانک يا تاجر تر منځ د عدل په بنسټ په کار اچول کېږي؛ پانګه به د څښتن وي او ګټې يا تاوان کې دواړه لوري په ټاکلو ونډو سره شريک وي . دا نظام هم زيات خوندي او هم په عدل ولاړ دی.

# درې شریک شیان

په اسلام کې ټول خلک په درې شيانو کې سره شريک دي:

۱ - اوبه.

۲ - واښه.

۳ - اور.

په حديث کې داسې راځي:

عن ابن عباس قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "الناس شركاء في ثلاث: فى الماء والكلأ والنار". ۱

له عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "خلک په درې شيانو کې سره شريک دي: اوبو، وښو او اور کې".

له اوبو نه هغه اوبه مراد دي، چې په مصرف او خوارۍ نه را اوځي لکه:

د خوړونو، چينو، کارېزونو، کوهيانو، سيندونو اوبه او داسې نورې.

که په مصرف او خوارۍ را اوځي هغه شريکې نه دي لکه: په ارټ، مشين او نورو وسائلو چې را اوځي يا چا په خپل لوښي کې اچولې وي.

---

[1] - رواه ابو داود و ابن ماجه.

او له وښونه مراد د عامو دښتو، غرونو او ورشوګانو واښه دي. د آبادو پټيو په پولو او دکښتونو په منځ کې واښه شريک نه دي بلکه هغه د خپل مالک دي، او له اورنه مراد د لمبې اخيستل دي. د غرونو او دښتو عام لرګي او ونې بوټي سره شريک دي؛ خو چې چا راټول کړل، راوړې وهل ياېې واخيستل؛ هغه شريک نه دي. همدارنګه له نغري نه سوی بې اجازې نه شې اخيستی؛ خو لمبه بې اجازې اخيستی شې لکه چې د چاله اوره خپل چراغ يا سوی يا بل کوم پېلوزی را ولګوې دا سره شريک دي.

## د ځمکې زېرمې شريکې دي

په اسلام کې د ځمکې معدنونه او زېرمې د ټولو خلکو شريکې دي لکه تېل، سره زر، قېمتي کاڼي، ګاز او داسې نور. دا چې هر څوک د خپل وس په کچ راباسي؛ هغه د هغه دي او کوم چې د حکومت سرپرستۍ سره اړتيا لري او حکومت يې را باسي په هغوکې دټولو مساوي حق دی، هر چاته خپله ونډه خپل کورته وړيا او بې کړاوه ور رسول کېږي.

دعربو،خليج او نورو دتېلو په زېرمو او نورو معدنونو او زېرمو کې دټولو خلکو برخه ده او څوک چې داسلام حکمونو ته غاړه ږدي؛ هغوی ټول پکې شريک دي. دا يواځې دسعودي ،ايران او نورو شخصي مال نه دی، په دې کې دبنګله دېش هغه بې وزله، چې له ولږې مرې،دسوډان هغه وږي، چې يوه مړۍ ډوډۍ نه لري،

دپېښور او جلال آباد هغه بې وزلي جواليان، چې ديوې مړۍ ډوډۍ دګټلولپاره ټوله ورځ دخلکوپنډونه په شاکوي اووړي او دهسکوغرونو او شاړو دښتوشپانه ،کوچيان او ټول وګړي سره شريک دي او دهر چاپکې مساوي ونډه ده، دخليفه او يو شپون تر منځ هيڅ توپير نشته.

## د شاړې ځمکې ودانول

داسلام له ښيګڼو نه دا هم ده، چې بې مالکه شاړه ځمکه هر چا ودانه کړه؛ دهغه ده. په حديث کې په دې هکله داسې راځي:
عن سعيد بن زيد عن النبى صلى الله عليه وسلم أنه قال: "من أحي أرضا ميتة فهى له وليس لعرق ظالم حق". ١

له سعيد بن زيد رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې فرمايلي يې دي :"چاچې شاړه ځمکه ابادە کړه، نو هغه دهمغه ده او دظالم نيالګي ايښودلو لپاره هيڅ حق نشته".
معنی دا چې که څوک دچا په ځمکه کې نيالګی يا بوټی وکري، نو په دې کرلو دهغه حق نه جوړېږي، بلکه دا ظالم دی. په بل حديث کې داسې راځي:
عن عائشة عن النبي صلى الله عليه وسلم قال :"من أعمر أرضا ليست لأحد فهو أحق بها". ٢

[1]- رواه الترمذى وابوداود ومالک واحمد.
[2]- رواه البخاري.

له عائشې رضی الله عنها نه روايت دی هغه له پېغمبر صلی الله علیه وسلم نه روايت کوي، چې فرمايلي يې دي:"چاچې داسې شاړه ځمکه اباده کړه، چې دهيچانه وي، نو هغه دهغې ډېر حقدار دی".

که په دې حديث باندې عمل وشي" ددې ځمکې ډېرې شاړې دښتې به ودانې شي،کورونه، کلي او ښارونه به ډېر شي، مېوې او غلې به ډېرې شي، باغونه ، ښېرازي او خوشحالي به زياته شي او بې وزلي به له منځه لاړه شي. دا چې په انسانانو انساني بنديزونه لګېدلي دي اوتنګ سياسي بريدونه ټاکل شوي دي؛ دا سراسر ظلم دی. اسلام هر انسان ته حق ورکوي، چې دنړۍ په هر ګوټ کې اوسېږي، ودې اوسېږي، په هيڅ ځای کې پردی نه دی او هره شاړه ځمکه چې ابادوي دادهغه حق دی، هيڅوک يې ترې نه شي اخيستی. يوائې مسلمانان نه بلکې که اهل ذمه کافران هم شاړه ودانه کړي، دا دهغه ده، ځکه چې ( من ) عام دی. داوسنيو ظالمانه قوانينو له امله ډېر انسانان بې وزلي او بې کوره دي ، ډېر له ولږې مري؛ او ځمکې شاړې پرتې دي !!!.

خو شاړه ځمکه هسې راګېرول او نه ودانول منع دي. که چا يوه شاړه ځمکه راګېره کړه او تر درې کلونو پورې يې ودانه نه کړه؛ بيا دهغه حق نه دی. اسلام ځمکې ودانوي او معطلې يې نه پرېږدي. دعمر رضی الله عنه په يو اثر کې راځي چې هغه وايي:

"من كانت له أرضا فعطلها ثلاث سنين لايعمرها فعمرها غيره فهو أحق بها ".[1]

" چې د چا ځمکه وي ؛ درې کاله يې پرېښوده، نه يې ودانوله او بيا بل چا ودانه کړه، نو همغه يې زيات حقدار دی".

## د چا ځمکه غصبول

په اسلام کې دچا په حق تېری او تجاوز کول ناروا دي. تردې چې دچا په ځمکه د عوه کول او دهغې غصبول هم ناروا اولويه ګناه ده.

په حديث کې داسې راغلي:

عن سعيد بن زيد قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :

"مـن أخذ شبرا من الأرض ظلما فإنه يطوقه يوم القيامة من سبع أرضين".[2]

له سعيدبن زيد رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "چاچې په ظلم د چا يوه لوېشت ځمکه واخيسته، نو د قيامت په ورځ به الله جل جلاله ورته اوه ځمکې په غاړه کې واچوي".

---

[1] - .أخرجه حميد بن زنجويه.

[2] - رواه البخارى.

## د خپل لاس ګټه

اسلام تل په کار کولو او د حلال رزق په ګټلو امر کوي.

په حديث کې داسې راځي:

عن المقداد بن معد يكرب قال: قال رسو الله صلى الله عليه وسلم: "ما أكل أحد طعاما قط خيرا من أن ياكل من عمل يديه وإن نبى الله داودعليه السلام كان يأكل من عمل يديه"[1]

له مقداد بن معد يکرب رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "له دې هيڅ ښه خواړه نه دي خوړلي، چې د خپلو لاسونو له کار څخه يې وخوري او د الله پيغمبر داود عليه السلام به دخپلو لاسونو له کارنه خوراک کاوه".

په اسلام کې د سوال کول او چاته تمه ناروا ده. مسلمان بايد تل دا کوښښ وکړي، چې خپل لاس باندې کار وکړي او له خپلې ګټې نه يې پخپله هم وخوري او نورو ته يې هم ورکړي.

په بل حديث کې داسې راځي:

عن رافع بن خديج قال: قيل يا رسول الله! أى الكسب أطيب؟ قال : "عمل الرجل بيده وكل بيع مبرور".[2]

---

[1]- رواه البخارى.

[2]- رواه أحمد.

له رافع بن خديج رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: چا وويل: ای د الله پېغمبره! کومه ګټه غوره ده؟ هغه وفرمايل: " د يو سړي په خپل لاس کار کول او هره پاکه حلاله سوداګري".
په بل حديث کې د حلال تجارت په هکله داسې راغلي دي:
عن أبی سعيد قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم "التاجر الصدوق الأمين مع النبيين والصديقين والشهداء".[1]
له ابو سعيد رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " ريښتينی او امانتدار سوداګر به له پېغمبرانو، ريښتينو او شهيدانو سره وي".

## اساني کول

د اسلام له ښېګړو څخه دا هم ده، چې په راکړې ورکړې، معاملې او پور کې له تنګلاسو سره داسانۍ کولو حکم کوي.
په حديث کې داسې راغلي دي:
عن أبي قتادة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "من سَرّهُ أن ينجيه الله من كرب يوم القيامة فلينفس عن معسر أو يضع عنه".[2]
له ابو قتاده رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "څوک چې په دې

[1]- رواه الترمذي وابن ماجه والدارمي والدار قطني.
[2]- رواه مسلم.

خوشحالېږي، چې الله تعالى يې د قيامت له غمونو څخه وژغوري، نو له تنګلاسي سره دې اساني وکړي، يا دې څه پور ترې کم کړي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبي اليسر قال: سمعت النبى صلى الله عليه وسلم يقول: "من أنظر معسرا أو وضع عنه أظله الله فى ظله".[1]

له ابواليسر رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې ما له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: "چا چې تنګلاسي ته مهلت ورکړ، يايې څه پور ترې کم کړ، نو الله تعالى به يې له خپل سيوري لاندې کړي".

## په هر څه کې اساني

همدارنګه له تنګلاسي او پوروړي سره په اسانۍ سربېره اسلام دخپلو بريدونو دننه په هر شي کې په اسانۍ کولو باندې حکم کوي.

په حديث کې داسې راځي:

عن جابر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "إن الله لم يبعثنى معنتا ولا متعنتا ولكن بعثنى معلما ميسرا".[2]

له جابر رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "الله جل جلاله زه سخت خويه او

[1] -رواه مسلم.
[2] - راوه مسلم.

سختي کوونکی نه یم لېږلی بلکه اساني کوونکی ښوونکی یې لېږلی یم".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبي موسىٰ قال: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا بعث أحدا من أصحابه فى بعض أمره قال: " بشروا و لاتنفروا ويسروا ولاتعسروا".[1]

له ابو موسی رضي الله عنه نه روایت دی هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې په خپلو صحابه و کې څوک کوم کار پسې لېږه، نو داسې به يې ورته وفرمايل: " زېری ورکړئ او خلک مه تروئ، اساني وکړئ او سختي مه کوئ".

## دروند تول

په تول کې کمی خو په اسلام کې ناروا دی؛ خو په دې سر بېره اسلام حکم کوي، چې تول دې دروند وشي او دتلې سر دې ښکته وي.

په حديث کې داسې راځي:

عن سويد بن قيس قال: جلبت أنا ومخرمة العبدى بزًّا من هجر فأتينا به مكة فجاء نا رسول الله صلى الله عليه وسلم يمشي

[1]- رواه البخاري ومسلم.

فساومنا بسراويل فبعناه وثم رجل يزن بالأجر فقال له رسول الله صلى الله عليه وسلم " زِن وارجح ".[۱]

له سويد بن قيس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: ما او مخرمه عبدي له هجرنه څه رختونه مکې مکرمې ته راوړل، رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ته راغی چې پيدل را روان ؤ، نو له مونږ سره يې په يو کميس، يا پرتوګ باندې نرخ کېښود او مونږ پرې وپلوره، هلته يو سړی ؤ چې په مزدورۍ يې تول کاوه، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: " تول کوه او دروند يې کوه ".

## موندلی شی

اسلام حکم کوي، چې چا څه شی بې ځايه وموندہ، نو په خلکو کې دې اعلان وکړي، بيا دې تر يو کال پورې وساتي، که خاوند يې پيدا شو، نو وربه يې کړي، که تر يو کال پورې يې خاوند پيدا نه شو، نو بيا يې استعمالولی او لګولی شي؛ خو که له يو کال نه وروسته يې هم څښتن پيدا شو، نو بيا به يې هم ورکوي او که لګولی يې ؤ، نو تاوان به يې ورکوي.

په حديث کې داسې راځي:

[۱]- رواه الترمذی و ابوداود و احمد وابن ماجة والدارمي.

عن زيد بن خالد قال: جاء رجل إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فسأله عن اللقطة فقال: " أعرف عفاصها ووكائها ثم عرفها سنة فإن جاء صاحبها وإلا فشأنك بها" قال : فضالة الغنم؟ قال: " هى لك أو لأخيك أو للذئب" قال: فضالة الإبل؟ قال: " مالك ولها؟ معها سقاؤها وحذاؤها تردالماء وتاكل الشجر حتى يلقاها ربها".[1] وفى رواية " فإن جاء ربها فأدها إليه".[2]

له زيد بن خالد رضي الله عنه نه روايت دی، هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يو سړی راغی او د موندلي شي په هکله يې ترې پوښتنه وکړه؛ هغه وفرمايل: " د هغه لوښی او مزی وپېژنه، بيايې تر يو کال پورې په خلکو کې اعلان کوه، که خاوند يې راغی؛ ور يې کړه که نه، نو څه دې چې خوښه وي؛ پرې ويې کړه" هغه وويل: د مېږو او اوزو موندلی څرنګه دی؟ هغه وفرمايل: " هغه يا ستا دی، يا ستا د ورور دی او يا د ليوه دی" هغه وويل: نو داوښانو موندلی څرنګه دی؟ هغه وفرمايل: " ستا له هغه سره څه کاردی؟ له هغه سره خپله غړکۍ اوخپلې څپلۍ شته، تر هغې اوبو ته ورځي او ونې بوټي خوري، تر څو چې خاوند ورسره مخ شي" او په يو روايت کې دي، چې "د موندلي شي خاوند که راغی نو ورېي کړه".

په بل حديث کې داسې راځي:

[1] - رواه البخارى ومسلم.
[2] - رواه مسلم.

عن زيد بن خالد قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " من أوىٰ ضالة فهو ضال مالم يعرفها ".[١]

له زيد بن خالد رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "چاچې د ورک شوي شي اعلان ونه کړ او پنا يې ورکړه، نو هغه بې لارې دى".

د مېږې اوزې په هکله يې چې وويل، د هغې مطلب دا دى، چې غرونو رغونو کې بې ځايه له رمې پاتې شوى به يا ته وړې، يا به يې ستا غوندې بل څوک وړي او يا به يې لېوه خوري.

## په ناروا د مال خوړل

اسلام د تجارت، صنعت، زراعت اونورې دحلالو ګټو لارې چارې ښوولې دي او په باطله، ظلم او ناروا لارو مال خوړل يې په سخته منع کړي دي.

الله تعالى فرمايي:

" يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلاَّ أَن تَكُونَ تِجَارَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ ".[٢]

" اى مؤمنانو! په خپلو منځو کې خپل مالونه د خوښۍ له تجارت پرته په باطله مه خورئ ".

---

[١]- رواه مسلم.
[٢]- سورة النساء: ٢٩.

# مزدور ته مزدوري ورکول

اسلام بې وزلو او غريبانوته په زکات او خيرات ورکولو او په ښېګړي کولو سربېره دمزدور د مزدورۍ پوره او په بيړه د ورکولو حکم کوي.

په حديث کې داسې راغي:

عن أبي هريرة عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: قال الله : " ثلاثة أنا خصمهم يوم القيامة: رجل أعطى بي ثم غدر و رجل باع حرا فأكل ثمنه ورجل إستاجرأجيرا فاستوفٰى منه ولم يعطه أجره".[1]

له ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې فرمايلي يې دي: "الله تعالیٰ فرمايلي دي: " درې کسان دي، چې د قيامت په ورځ زه له هغوی سره جګړه کوونکی يم: يو هغه سړی دی، چې زما په نامه يې له چاسره ژمنه وکړه او بيا يې ماته کړه، بل هغه سړی دی، چې ازاد انسان يې وپلوره او دهغه پيسې يې وخوړې او بل هغه سړی دی، چې مزدور يې ونيوه، کار يې ترې پوره واخيست" خو د هغه مزدوري يې ورنه کړه".

به بل حديث کې داسې راغي:

[1] - رواه البخاري. وابن خزيمة.

عن عبدالله بن عمر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " أعطوا الأجير أجره قبل أن يجف عرقه". [١]

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: " مزدورته دهغه د خولې له وچېدو نه مخکې خپله مزدوري ورکړئ ".

## له خادم سره ښه سلوک

د اسلام له ښېګړو څخه يوه ښېګړه دا ده، چې له خادمانو اومزدورانو سره په ښه سلوک، ښو اخلاقو او ښېګړې کولو امر کوي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبى هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "إذا صنع لأحدكم خادمه طعامه ثم جاءه به و قد ولى حره ودخانه فليقعده معه فليأكل فإن كان الطعام مشفوها قليلا فليضع فى يده منه أكلة أو أكلتين". [٢]

---

[١] - و رواه أبوهريرة وجابر وأنس وعطاءبن يسار. رواه ابن ماجة والبيهقي في السنن الكبرى والصغرى ومعرفة السنن والآثار والطبراني في الصغير والطحاوي وابن زنجويه في كتاب الأموال وأبونعيم في أخبار أصفهان وحلية الأولياء وأبوالقاسم في الفوائد وشهاب القضاعي في مسنده وأبويعلى في مسنده. وفي الحديث مقال ولكن انجبر بكثرة الطرق وصحة معناه بحديث البخاري الذي ذكرناه قبله. قال الزيلعي رحمه الله:(وَمَعْنَى الْحَدِيثِ فِي الصَّحِيحِ أَخْرَجَهُ الْبُخَارِيُّ). ثم ذكر الحيث. وقال الحافظ أحمد بن أبي بكر بن إسماعيل البوصيري في (إتحاف الخيرة المهرة بزوائد المسانيد العشرة):وبالجملة، فهذا المتن مع غرابته يكتسب بكثرة طرقه قوة، واللّٰه أعلم. وقال المنذري: وبالجملة فهذا المتن يكتسب قوة بكثرة طرقه، والله أعلم. وصححه الألباني في الإرواء.

[٢] - رواه مسلم.

له ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "کله چې ستاسو کوم کس ته خپل خادم خواړه تيار کړل او بيا يې ورته راوړل، چې ګرمي او لوګي يې هغه ګاللي وي، نو له ځان سره دې يې کېنوي او ورسره ودې يې خوري، که خواړه لږ او نا څيزه وو، نو لاس کې دې يوه مړۍ دوه مړۍ ترې ورکړي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبي ذر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "إخوانكم جعلهم الله تحت أيديكم فمن جعل الله أخاه تحت يديه فليطعمه مما يأكل وليلبسه مما يلبس ولا يكلفه من العمل ما يغلبه فإن كلفه ما يغلبه فليعنه عليه".[1]

له ابو ذر رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : "ستاسو ورونه الله ستاسو له لاسو لاندې ګرځولي دي ، د چا ورور چې الله دهغه له لاس لاندې ګرځولى وي، نو له هغو خوړو دې ورکړي، چې پخپله يې خوري، هغه ډول جامې دې ور واغوندي، چې خپله يې اغوندي او په هغه کار دې يې نه ګماري، چې پرې زيات وي. که په داسې کاريې وګماره، چې پرې زيات و، نو مرسته دې ورسره پکې وکړي".

[1]- رواه البخارى ومسلم.

## دځان لپاره چې څه خوښوې؛ نورو لپاره يې هم خوښ کړه

اسلام مسلمانانو ته حکم کوي، چې څه د ځان لپاره خوښوې؛ نورو ته يې هم خوښ کړه. په حديث کې د غوره ايمان په هکله داسې راغلي دي:

عن معاذ أنه سأل النبی صلی الله عليه وسلم عن أفضل الإيمان؛ قال: "أن تحب لله و تبغض لله وتُعْمِلَ لسانك فی ذکر الله". قال: وماذا يارسول الله؟ قال: "و أن تحب للناس ما تحب لنفسك و تکره لهم ماتکره لنفسك".[1]

له معاذ رضي الله عنه نه روايت دی چې هغه له پېغمبر صلی الله عليه وسلم نه د غوره ايمان په هکله وپوښتل؛ هغه ورته وفرمايل: " (غوره ايمان دا دی) چې ته محبت هم الله لپاره وکړې، کينه هم الله لپاره وکړې او خپله ژبه دې د الله په يادولو کې مشغوله کړې" هغه وويل: او نور څه دي ای د الله پېغمبره!؟. هغه وفرمايل: " او داچې د خلکو لپاره هغه څه خوښ کړې، چې د خپل ځان لپاره يې خوښوې او د هغوی لپاره هغه څه بد وګڼې چې د خپل ځان لپاره يې بد ګڼې".

خلکو ته د خير رسولو او له شرنه دځان ساتلو په هکله داسې حديث راغلی دی:

عن أبی هريرة قال: إن رسول الله صلی الله عليه وسلم وقف علی ناس جلوس فقال: "ألا أخبرکم بخير کم من شرکم؟" قال: فسکتوا. فقال

[1] - رواه احمد.

ذلك ثلاث مرات، فقال رجل: بلى يارسول الله! أخبرنا بخيرنا من شرنا فقال: " خيركم من يرجى خيره و يؤمن شره و شركم من لايرجى خيره و لايؤمن شره". ١
له ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم څه ناستو خلکو ته ودرېد او ویې وفرمایل: " آيا زه تاسوته ستاسو ښه او بد خلک وښيم؟" هغوی چوپ شول او رسول الله صلى الله عليه وسلم دا خبره درې ځل وکړه، نويو سړي وويل: ولې نه ای د الله پېغمبره! مونږ ته زمونږ ښه او بد وګړي راوښيه. هغه وفرمايل: " ستاسو ښه هغه څوک دی، چې د خير هيله ترې کېږي او له شره يې خلک په امن وي او ستاسو بدهغه څوک دی، چې نه ترې د خير هيله کېږي او نه يې له شره خلک په امن وي".

## د اولادونو تر منځ عدل کول

اسلام سراسر د عدل دين دی او له هيچا سره د ظلم کولو اجازه نه ورکوي، تردې چې پلار به د خپلو اولادونو تر منځ هم عدل کوي.

په حديث کې داسې راځي:

عن النعمان بن بشيرأن أباه أتى به إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: إنى نحلت إبنى هذا غلاما :قال:" أكل ولدك نحلت

[1] - رواه الترمذي والبيهقى فى شعب الإيمان.

مثله؟ " قال: لا. قال: "أيسرك أن يكونوا إليك فى البر سواء؟" قال: بلى. قال: "فلا إذاً". وفى رواية: قال: أعطاني أبي عطية فقالت عمرة بنت رواحة: لا أرضى حتٰى تشهد رسول الله صلى الله عليه وسلم؛ فاتىٰ رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال : إنى أعطيت إبنى من عمرة بنت رواحة عطية فأمرتنى أن أشهدك يا رسول الله! قال: "أعطيت سائر ولدك مثل هذا؟" قال: لا. قال: "فاتقوا الله واعدلوا بين أولادكم" وفى رواية: "لا أشهد على جور". [۱]

له نعمان بن بشير نه روايت دى، چې د هغه پلار له هغه سره رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغى او ورته ويې ويل: ما خپل دې زوى ته يو مريى ډالۍ کړ. هغه وفرمايل: "آيا خپلو ټولو بچوته دې همدې غوندې ډالۍ ورکړې دي؟ هغه وويل: نه. رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: "آيا ته په دې خوشحالېږې، چې هغوى له تاسره په ښېګړې کولو کې سره برابر وي؟ هغه وويل: هو. هغه وفرمايل : "نو بيا داسې مه کوه". او په يو روايت کې داسې دي، چې نعمان بن بشير وايي: ماته خپل پلار يوه ډالۍ راکړه (زما مور) عمره بنت رواحه وويل: زه تر هغې نه راضي کېږم، تر څو چې ته رسول الله صلى الله عليه وسلم په دې ګواه کړې. نو هغه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغى او ويې ويل: د عمره بنت رواحه نه چې زماکوم زوى دى ده ته مې څه ډالۍ ورکړه نو هغې راته وويل، چې تاپرې ګواه کړم اى د الله پېغمبره!. هغه ورته وفرمايل: "آيا خپلو ټولو اولادونو ته دې داسې ډالۍ ورکړې ده؟" هغه وويل: نه، نو هغه

[۱]- رواه البخارى ومسلم.

وفرمايل: "الله نه ووېرېږئ او د خپلو اولادنو ترمنځ عدل وکړئ". او په يو روايت کې دي چې "زه په ظلم ګواهي نه کوم".

## مېلمه پالنه

په اسلام کې مېلمه پالنې ته زياته پاملرنه شوې ده او مؤمنانو ته حکم شوی دی، چې د مېلمنو عزت وکړي. په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فليكرم ضيفه و من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فلا يؤذ جاره و من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فليقل خيرا أو ليصمت ".[1]

له ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "څوک چې په الله او د قيامت په ورځ ايمان لري، نو د خپل مېلمه عزت دې وکړي او څوک چې په الله او د قيامت په ورځ ايمان لري، نو خپل ګاونډي ته دې کړاو نه رسوي او څوک چې په الله او د قيامت په ورځ ايمان لري، نو د خير خبره دې وکړي يا دې چوپ شي".

د مېلمه زيات اکرام يو شواروز دی، د مېلمستيا حق يې درې ورځې دی او نور پرې خيرات دی. په حديث کې داسې راځي:

[1]- رواه البخاري ومسلم.

عن أبى شريح الكعبى أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فليكرم ضيفه جائزته يوم وليلة والضيافة ثلاثة أيام فما بعد ذلك فهو صدقة ولا يحل له أن يثوى عنده حتى يحرجه"[1]

له ابو شريح كعبي رضي الله عنه نه روايت دى، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "څوک چې په الله او د قيامت په ورځ ايمان لري، نو دخپل مېلمه پالنه دې وکړي. د مېلمه امتيازي پالنه يو شواروز ده، مېلمستيا يې درې ورځې ده او له دې وروسته خيرات دى. او دا روانه دي، چې کوربه سره تر هغې واړ وي، تر څو يې چې تنګ کړي".

## سود اخيستل

اسلام د سود په کلکه مخالفت او مخنيوى کوي او سود ډېره لويه ګناه ده. چاته پور ورکول او بيا په اصلي پنګه زياته ګټه اخيستل سود بلل کېږي او دا حرام دى. ګټه د حلال تجارت په ډولونو او د انصاف او عدالت په بنسټونو اخيستل روا دي؛ د سود لاره دظلم لاره ده.

الله تعالى فرمايي:

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَأْكُلُواْ الرِّبَا أَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً وَاتَّقُواْ اللّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ".[2]

---

[1]- رواه البخاري ومسلم.

[2]- سورة آل عمران: ١٣٠.

"ای مؤمنانو! په څو چنده سود مه خورئ او له الله نه ووېرېږئ، ښايې چی بريالي شئ".

او فرمايي:

"الّذينَ يَأكُلُونَ الرِّبَا لاَ يَقُومُونَ إلاّ كَمَا يَقُومُ الّذي يَتَخَبّطُهُ الشّيْطَانُ مِنَ الْمَسّ ذٰلِكَ بِأَنهمْ قَالُواْ إِنّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبَا وَأَحَلّ الله الْبَيْعَ وَحَرّمَ الرِّبَا". ۱

" هغه خلک، چې سود خوري نه ودرېږي مګر دهغه چا په ډول، چې شيطان يې درسېدو له امله ګډوډوي. دا له دې امله چې هغوی ويلي دي؛ سوداګري د سود غوندې ده؛ حال داچې الله سودا ګري حلاله کړې ده او سود يې حرام کړی دی".

نو اسلام سود منع کړی دی او که چا د ناپوهۍ له امله په سود پيسې ورکړې وې، يا يې له پوهې سره ورکړې وې او بيا يې توبه وايسته، نو هغه به له پوروړي نه خپله اصلي پنګه واخلي او سود به ترې نه اخلي او که سود يې ورڅخه اخيستی ؤ؛ هغه به په اصلي پنګه کې حساب کړي، په اصلي پنګه زيات ورته هيڅکله نه دي روا.

الله تعالی فرمايي:

"فَمَن جَاءهُ مَوْعظَةٌ مّن رّبه فَانتَهَىَ فَله مَا سَلَفَ وَأَمْرُهُ إِلَى الله وَمَنْ عَادَ فَأُوْلَـئِكَ أَصْحَابُ النّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ". ۲

---

[1]- سورة البقرة: ۲۷۵.

[2]- سورة البقرة: ۲۷۵.

" چاته چې د خپل رب له لوري پند راغی او هغه منع شو، نو هغه لپاره هغه دي، چې وړاندې تېر شوي دي او کار يې الله پورې اړه لري او څوک چې د سود اخيستلو ته راستون شو، نو هغوی دوزخيان دي تل به پکې اوسي".

او فرمايي:

"وَإِن تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُؤُوسُ أَمْوَالِكُمْ لاَ تَظْلِمُونَ وَلاَ تُظْلَمُونَ"[1]

"او که توبه مو وکړه، نو تاسو لپاره خپل اصلي مالونه دي، نه به تاسو تېری کوئ او نه به په تاسو تېری کېږي"

او که پوروړی تنګلاسی ؤ او پور يې نه شو خلاصولی، نو بيا به تر هغه ورته ګوري، تر څو ورسره پيداشي؛ خو که ورويې ښښي نو ډېره ښه ده.

الله تعالی فرمايي:

"وَإِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ وَأَن تَصَدَّقُواْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ"[2]

"او که تنګلاسی ؤ، نو تر اسانۍ ورته کتل دي او که پوهېږئ، نو چې ورو يې ښښئ، دا تاسو لپاره ډېره غوره ده".

اسلام د سود په وړاندې ښودلو حکم کوي او فرمايي:

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اتَّقُواْ اللّهَ وَذَرُواْ مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُواْ فَأْذَنُواْ بِحَرْبٍ مِّنَ اللّهِ وَرَسُولِه"[3]

---

[1] - سورة البقرة:۲۷۹.
[2] - سورة البقرة: ۲۸۰.
[3] - سورة البقرة: ۲۷۸- ۲۷۹.

"ای مؤمنانو! له الله نه ووېرېږئ او که مؤمنان يئ، نو له سود نه چې څه پاتې دي؛ هغه پرېږدئ؛ که داکار مو ونه کړ، نو الله او د هغه له پيغمبر سره د جنګ اعلان وکړئ".

همدارنګه د سود په مال کې الله تعالی خير او برکت نه اچوي.

الله تعالٰی فرمايي:

"يَمْحَقُ اللهُ الرِّبَا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ وَاللهُ لاَ يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ". ۱

"الله سود له منځه وړي او خيراتونه زياتوي او الله هر ناشکره اوګناهګار نه خوښوي".

په اسلام کې سود خوړل ډېره لويه ګناه ده.

په حديث کې د سود په هکله داسې راغلي دي:

عن جابرقال:لعن رسول الله صلى الله عليه وسلم آكل الربوا ومؤكله وكاتبه وشاهديه وقال: "هم سواء". ۲

له جابر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم د سود په خوړونکي ، د سود په ورکوونکي، د سود په ليکونکي او د سود په ګواهانو لعنت ويلی دی او ويې فرمايل: "دا ټول سره برابر دي".

په بل روايت کې داسې راځي:

---

۱- سورة البقرة: ۲۷۶.

۲- رواه مسلم.

عن أبي هريرة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "ليأتين على الناس زمان لايبقى أحد إلا أكل الربوا فإن لم يأكله أصابه من بخاره و فى رواية: من غباره".١

له ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې فرمايلي يې دي: "په خلکو به خامخا داسې يو وخت راشي، چې هيڅوک به بې له سود خوړلو پاتې نه شي، که خوړلی يې نه وي، نو تپ يا ګرد خو به يې خامخا ورته رسېدلی وي".

د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا وړاندوينه په اوسني عصر کې رېښتيا شوه، چې د نړۍ اقتصاد او راکړه ورکړه له سودي بانکونو پورې تړلې ده.

نو که څوک سود نه خوري" هم دهغه جېب ته چې کومې پيسې راځي؛ هغه د بانکونو له سودي معاملو نه راتېرې شوې وي. او دايې هغه تپ او ګرد دی، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي.

[1]- رواه ابو داود واحمد والنسائى وابن ماجه.

# ټګي برګي منع ده

په اسلام کې هر ډول ټګي برګي، غولول او تېر ايستل منع دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة أن رسول الله صلى الله عليه وسلم مر على صبرة طعام فأدخل يده فيها فنالت أصابعه بللا فقال: "ما هذا يا صاحب الطعام؟" قال: أصابته السماء يارسول الله!. قال: "أفلا جعلته فوق الطعام حتى يراه الناس، من غش فليس مني".[1]

له ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د غلې په يو ډېري تېرېده؛ خپل لاس يې پکې ورد ننه کړ، ګوتې يې لمدې شوې، نو ويې فرمايل: "ای د غلې والا ! دا څه دي؟" هغه وويل: ای د الله پيغمبره! باران پرې شوی دی. رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: " نو بيا دې د غلې له پاسه ولې نه اچوله، چې خلک يې وګوري، چاچې ټګي وکړه؛ هغه له ما څخه نه دی".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن واثلة بن الأسقع قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "من باع عيبا لم ينبه، لم يزل فى مقت الله أولم تزل الملائكة تلعنه".[2]

---

[1]- رواه مسلم.

[2]- رواه ابن ماجه.

له واثله بن اسقع رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: "چا چې عيبجن شی خرڅ کړ او عيب يې ور ونه ښود، نو تل به د الله په غوسه کې وي، يا به تل پرښتې پرې لعنت وايي".
نو اسلام مونږ ته په دې حکم کوي، چې که په مال کې مو کوم عيب وي؛ هغه بايد اخيستونکي ته ور وښيو.

## احتکار منع دی

احتکار په قېمتۍ کې زياتې قېمتۍ ته د غلو دانو ساتلو ته ويل کېږي، چې د قېمتۍ په وخت کې غله واخلي ، بيا يې نه پلورې او زياتې قېمتۍ ته يې ساتي؛ دا کار ناروا دی. که دخپلې ځمکې غلې دانې دې وي او په بازار کې د غلې کمی نه وي، يا يې د ارزانۍ په وخت کې واخلې، يا له غلې دانې او خوړو نه پرته نور شيان وي؛ د هغو ساتل روا دي؛ خو غلې دانې د عامو خلکو له ضروري اړتياو نه دي، نو ځکه يې د قېمتۍ په وخت کې لا قېمتۍ ته ساتل منع دي. په حديث کې داسې راځي:
عن معمر قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم: "من احتكر فهو خاطئ".[1]

[1]- رواه مسلم.

له معمر رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي، "چاچې احتكار وكړ، نو هغه ګناهګار دى".

په بل حديث كې داسې راغلي:

عن عمر عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: " الجالب مرزوق والمحتكر ملعون". ۱

له عمر رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې پېغمبر صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " بازارته د غلو دانو راوړونكي ته الله ګټه وركوي او احتكار كوونكى لعنتي دى".

په بل حديث كې داسې راغلي:

عن معاذ قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "بئس العبد المحتكر إن أرخص الله الأسعار حزن و إن أغلاها فرح". ۲

له معاذ رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي: ماله رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: "احتكار كوونكى بنده ډېر بد دى، كله چې الله نرخونه ارزانه كړي، نو خپه شي او كه ګران يې كړي، نو خوشحاله شي".

[1] - رواه ابن ماجه والدارمي.
[2] - رواه البيهقى.

# زياتي اوبه

په اسلام کې له اړتيا نه زياتې اوبه منع کول ناروا دي.
په حديث کې داسې راځي:
عن أبى هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :
"لاتمنعوا فضل الماء لتمنعوا به فضل الكلأ". ١

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: " ددې لپاره، چې زياتي واښه پرې منع کړئ؛ زياتي اوبه مه منع کوئ".

[1] - رواه البخاري ومسلم.

# ښښلي نه راستنېږي

د اسلام له ښېګړو او محاسنو نه دا هم ده، چې چا چاته کوم شی ډالۍ کړ او ور ويې ښښه؛ د هغه بېرته اخيستل ناروا دي، تر دې چې په قېمت يې هم بيرته نه شي اخيستی.

په حديث کې داسې راځي:

عن ابن عباس قال: قال النبی صلی الله عليه وسلم : "ليس لنا مثل السوء، الذي يعود فی هبته کالکلب يرجع فی قيئه".[1]

له عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې پېغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: "مونږ لپاره ناوړه مثال نشته، څوک چې خپله ډالۍ او ښښل شوی شی بيرته اخلي؛ هغه د سپي غوندې دی، چې خپلې کانګې بيرته څټي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن عمر بن الخطاب يقول: حملت علی فرس لي فی سبيل الله فأضاعه الذي کان عنده فأردت أن أشتريه منه و ظننت أنه بائعه برخص فسألت عن ذلك النبی صلی الله عليه وسلم فقال: "لاتشتره و إن أعطاکه بدرهم واحد ، فإن العائد فی صدقته کالکلب يعود فی قيئه".[2]

---

[1] - رواه البخاري.
[2] - رواه البخاري.

له عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي:
ما د الله د لارې په جهاد کې خپل يو آس چاته وبښه، هغه سړي يې ښه پالنه ونه کړه او ترې برباد شو، نو ما وغوښتل، چې له هغه نه يې په بيه واخلم او ګمان مې وکړ، چې هغه يې ارزانه پلوري، نو له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه مې د دې پوښتنه وکړه؛ هغه وفرمايل: "که په يو درهم يې درکوي؛ هم مه يې اخله، ځکه چې خپل خيرات بيرته اخيستونکی د هغه سپي غوندې دی، چې خپلې کانګې بېرته څټي".

# منځلاري

اسلام د اعتدال او منځلارۍ دين او د افراط او تفريط تر منځ دی. په حديث کې رسول الله صلی الله عليه وسلم مونږ ته ښه کارونه داسې راپه ګوته کوي:
عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم: "الإقتصاد فی النفقة نصف المعيشة والتودد إلی الناس نصف العقل وحسن السؤال نصف العلم".[1]
له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی، هغه وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "په لګښت کې

[1] - رواه البيهقی فی شعب الايمان.

منځلاري، نيمه ګوزاره ده، له خلکو سره مينه کول نيم عقل دی او ښه پوښتنه نيم علم دی".

په لګښت کې منځلاري دا ده، چې نه بخل وکړې اونه اسراف.او ښه پوښتنه دا ده، چې د پوښتنې ټول اړخونه واضح کړې اوهيڅ إبهام، شک او احتمال پکې پاتې نه شي، نو ځواب به يې هم نيمګړی نه وي، بلکه بشپړ پوره او کره به وي. نو نيم علم ښه پوښتنه شوه او نيم علم يې ښه ځواب شو. د ښو اخلاقو، ښه خوی، ښه تدبير او منځلاری په هکله په حديث کې داسې راځي:

عن عبدالله بن سرجس أن النبی صلی الله عليه وسلم قال: "السمت الحسن والتؤدة والإقتصاد جزء من أربع و عشرين جزء من النبوة".[1]

له عبد الله بن سرجس رضي الله عنه نه روايت دی، چې پېغمبر صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "ښه خوی، په تدبير کار کول او منځلاري د پېغمبرۍ له برخو نه څلرويشتمه برخه ده".

ښه خوی: ښو اخلاقو او ښه سلوک ته ويل کېږي. تدبير: هر کار په ښه سرشتې، غور او فکر کولوته ويل کېږي او منځلاري: د افراط او تفريط تر منځ تللو ته ويل کېږي.

[1]- رواه الترمذی.

## اسراف

دمال بې ځايه او بې ضرورته لګښت اسراف بلل کېږي.
اسلام د اسراف مخنيوی کوي او لويه ګناه يې ګڼي.
الله تعالٰی فرمايي:
"وَلاَتُسْرِفُواْ إِنه لاَيُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ".۱
" او اسراف مه کوئ، الله بې شکه اسراف کوونکي نه خوښوي".
او فرمايي:
"وكُلُواْ وَاشْرَبُواْ وَلاَتُسْرِفُواْ إِنه لاَيُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ".۲
"خورئ، څښئ او اسراف مه کوئ، هغه بې شکه اسراف کوونکي نه خوښوي".
او فرمايي:
"وَآت ذَا الْقُرْبَى حَقّهُ وَالْمسْكِينَ وَابْنَ السّبِيلِ وَلاَ تُبَذّرْ تَبْذِيراً إِنّ الْمُبَذّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشّيَاطِينِ وكَانَ الشّيْطَانُ لِرَبه كَفُوراً".۳

[1]- سورة الانعام: ۱٤۱.
[2]- سورة الاعراف: ۳۱.
[3]- سورة الاسراء ۲٦- ۲۷.

" خپلوان، بې وزلي او مسافر ته خپل خپل حق ورکړه او زيات اسراف مه کوه؛ اسراف کوونکي بې شکه د شيطانانو ورونه دي او شيطان دخپل رب ناشکره دی".

د مؤمنانو ښه صفتونه اوکره ځانګړتياوې داسې شمېري:

"وَالَّذِينَ إِذَا أَنفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذَٰلِكَ قَوَامًا". ۱

"او نېکان هغه خلک دي، چې کله لګښت کوي، نو نه اسراف کوي او نه بخل، او د دې دواړو تر منځ په انصاف برابرېږي".

داسلام له ښېګړو او محاسنو نه دا هم ده، چې د اسلام راشدو خلفاؤ داسراف، ترف او عياشۍ ژوند نه کاوه او خپلو د حکومت مامورينو او مسؤلينو ته به يې هم په همدې حکم کاوه.

له عمر رضي الله عنه په دې هکله داسې روايت راغلی دی:

عن عمر بن الخطاب أنه كان إذا بعث عماله شرط عليهم أن لا تركبوا برذونا ولا تأكلوا نقيا ولا تلبسوا رقيقا ولا تغلقوا أبوابكم دون حوائج الناس فإن فعلتم شيئا من ذلك فقد حلت بكم العقوبة ثم يشيعهم". ۲

عمر بن الخطاب رضي الله عنه به چې کله خپل مامورين لېږل، نو دا شرطونه به يې پرې لګول چې: "په ښه آس به نه سپرېږئ، کره خواړه او د غلبېل شويو اوړو ښکلې ډوډۍ به نه خورئ، نرمې جامې به نه اغوندئ او د خلکو د اړتياؤ په مخکې به خپلې دروازې

۱- سورة الفرقان: ٦٧.
۲- رواه البيهقى.

نه بندوئ؛ که په دې کارونو کې مو کوم يو وکړ، نو تاسو ته به سخته سزا درکول شي. بيا به يې له دې نصيحت نه وروسته رخصتول".

نو اګر که له پاک حلال رزق نه، چې اسراف پکې نه وي، په کره آس سپرېدل، ښه خوراک کول، نرمې اوښې جامې اغوښتل روا دي؛ خو د حکومت په مامورينو دا بنديزونه له دې امله لګېدل، چې عياش رووږدي نه شي، رشوت اخيستلو ته اړ نه شي او بله کومه ناروا او اداري فساد ونه کړي.

## بخل

اسلام په هر کار کې په منځلارۍ باندې حکم کوي. که له يوه پلوه اسراف منع دی، نو له بله پلوه په خپل ځای کې د مال نه لګول، محتاجو او بې وزلو سره ښېګړه نه کول او بخل هم ناوړه عمل دی او اسلام يې غندي.

الله تعالی فرمايي:

"الّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ النّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُونَ مَا آتَاهُمُ الله مِن فَضْلِه وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا". ۱

"الله تعالی هغه خلک نه خوښوي، چې بخل کوي، خلکو ته په بخل کولو امر کوي او الله چې د خپلې مهربانۍ له مخې کوم مال

[1] - سورة النساء: ۳۷.

ورکړې دی؛ هغه پټوي. او مونږ د منکرانو لپاره سپکوونکی عذاب تيار کړی دی".

اوفرمايي:

"وَلاَ يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللّه مِن فَضْلِه هُوَ خَيْراً لَهُمْ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَهُمْ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُواْ بِه يَوْمَ الْقِيَامَةِ". ۱

" هغه خلک چې په هغه مال بخل کوي، چې الله د خپلې لورېنې له مخې ورکړی دی؛ دا دې نه ګڼې چې ګڼې دا د دوی لپاره غوره دی بلکه دا د دوی لپاره ډېر بد دی. د قيامت په ورځ به ورته هغه مال په غاړه کې ور واچول شي، چې بخل يې پرې کړی دی؛.

"وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلاَ يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللّه فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ يَوْمَ يُحْمَى عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَذَا مَا كَنَزْتُمْ لأَنفُسِكُمْ فَذُوقُواْ مَا كُنتُمْ تَكْنِزُونَ". ۲

"هغه خلک، چې سره اوسپين زر ذخيره کوي اود الله په لار کې يې نه لګوي؛ د درد ناک عذاب زېری ورکړه، هغه ورځ د پام وړ ده، چې هغه به د دوزخ په اور کې سره شي او بيا به پرې د دوی تندي، اړخونه او شاګانې وداغل شي، دا هغه مال دی، چې تاسو د خپلو ځانونو لپاره ساتلی ؤ، نو څه مو چې ساتل هغه وڅکئ".

"وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ". ۳

---

۱- سورة آل عمران: ۱۸۰.
۲- سورة التوبة: ۳٤-۳۵.
۳- سورة الحشر: ۹. سورة التغابن: ۱٦.

"او څوک چې د خپل ځان له بخل او حرص نه وژغورل شو، نو همدوی بريالي دي".

## د خوړو جامو بريدونه

د خوړو جامو په هکله بريد دا دی، چې اسلام کوم منع کړي وي؛ هغه مه کوه، نور ازاد يې. او د منعې بريدونه دا دي، چې د ظلم اوحرام نه وي، د چا حق پکې نه وي، اسراف او زياتی پکې نه وي، تکبر او بې شرمي پکې نه وي او پاک وي.

په حديث کې داسې راځي:

عن ابن عباس قال: " كُلْ ماشئت والبس ماشئت ما أخطأتك اثنتان: سرف ومخيلة". ۱

له عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي: "څه دې چې خوښ وي؛ خوره يې او څه دې چې خوښ وي؛ اغونده يې؛خوشرط يې دا دی، چې دوه کارونه پکې نه وي: يو اسراف او بل کبر".

همدا معني په مرفوع حديث کې داسې راغلې ده:

عن عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم "كلوا واشربوا و تصدقوا والبسوا مالم يخالط إسراف ولا مخيلة". ۲

---

[1] - رواه البخاري موقوفا معلقا.
[2] - رواه احمد والنسائى وابن ماجه.

عمرو بن شعیب له خپل پلار نه هغه یې له نیکه نه روایت کوي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: "خورئ، څښئ، خیرات ورکوئ او اغوندئ، تر څو چې اسراف او کبر ورسره ګډ نه وي".

## سره زر او ورېښم

د سرو زرو او ورېښمو استعمال په نارینه ؤ باندې حرام او ښځو ته روا دی او تجارت یې دواړو ته روا دی.

په حدیث کې داسې راغلي:

عن أبی موسی الأشعري أن النبی صلی الله علیه وسلم قال: "أحل الذهب والحریر للاناث من أمتی و حرم علی ذکورها".[1]

له أبو موسی أشعری رضي الله عنه نه روایت دی، چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل: " سره زر او ورېښم زما د امت ښځینه ؤ ته روا شوي او په نارینه ؤ یې حرام شوي دي".

نو ښځینه ؤ ته د سرو زرو هر ډول استعمال روا دی، چې د پسولونو او جامو په ډول یې استعمالوي او د محلق (کړی شوي) او غیر محلق (ناکړی) توپیر چې چا کړی؛ هغوی سهوه شوي دي. سره زر خو د کوم مولي په شکل نه استعمالیږي؛ خامخا به محلق وي. او ورېښم هم ښځینه ؤ ته روا دي.

---

[1] ـ رواه الترمذی والنسائی.

خوپه نارینه ؤ دواړه حرام دي. او تجارت او سودا ګري یې نارینه او ښځینه دواړو ته رواده.

## د مال او شهرت حرص

دمال او شهرت حرص ډېر ناوړه خوی دی؛ څوک چې په دې حرص اخته شي، نو بیاهر ناروا ته لاس وراچوي او په هیڅ اړ نه وي، تمیز ورځخه ورک شي او نړه څاروی شي؛ بلکه له څاروي هم بتر شي؛ ځکه چې د دې حرص له امله د نورو په حقوقو تېری کوي او د حلالو او حرامو تر منځ توپیر هم نه کوي.

په حدیث کې داسې راځي:

عن کعب بن مالك قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: "ماذئبان جائعان أرسلا فی غنم بأفسد لها من حرص المرء علی المال والشرف، لدینه". [۱]

له کعب بن مالک رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : "دوه وږي لېوان، چې په یوه رمه ور ګډ شوي وي؛ دومره زیان ورته نه رسوي لکه د یو سړي دمال او شهرت حرص یې چې د هغه دین ته رسوي".

[۱] - رواه الترمذي والدارمي.

دا هم د اسلام يو فضيلت دی او له انساني ټولنې سره يې يوه ستره ښېګڼه ده، چې خپل منونکي د مال او شهرت له حرصه منع کوي.

د دې دا مطلب نه دی، چې مسلمان به د حلال رزق له ګټلونه هم وروسته کېږي؛ بلکه د حرص او روا طلب تر منځ ډېر لوی توپير دی. اسلام له يوه پلوه مسلمانانو ته د حلال رزق د ګټلو حکم کوي او ورته وايي: "وابتغوا من فضل الله" "د الله د حلالې روزۍ مهرباني ولټوئ". او دا لټون له هغو ټولو روا وسيلو نه کار اخيستل دي، چې حلاله روزي او حلال مال پرې ګټل کېږي او بيا يې د هر ډول مال نصابونه ټاکلي او مسکينانو، بې وزلو، غريبانو، يتيمانو او مستحقوته د زکات ورکولو او نورو مالي مرستو ورکولو حکم کوي او څه بريدونه او ضوابط ورته ټاکي،او له بله يې له زيات حرصه منع کوي، چې يوازې د مال ګټل يې د ژوند موخه نه شي او له انساني ارزښتونو څخه په وتو حيوان صفته نه شي.

## په اسلام کې د ښځو حقوق

د اسلام معاند دښمنان هڅه کوي، چې د ښځو د حقوقو په نوم د ښځو حقوق غصب کړي، د ښځې عزت، پت او وقار له منځه يوسي، ښځه يوه سپکه نانځکه جوړه کړي او يوازې د خپلو نفسي غوښتنو او د جنسي تسکين لپاره يې بې دريغه او کاواکه استعمال کړي.

کله ترې پرتوگ او جامې اوباسي او بربنډه يې ټولنې ته وړاندې کوي، کله يې د شرابو او کبابو په محفلونو، صحنو او کلبونو کې گډوي او د هغې له مجبورۍ، ځوانۍ، ناپوهۍ او له شخصي ظروفونه په ناروا ګټې اخيستو سره د هغې سپکاوی کوي، کله يې د سينما په پرده دتلويزون په ښيښه او دورځپاڼو او مجلو په پاڼو کې د تجارت د متاع په توگه څرگندوي، کله يې د تجارت د اشتهارونو او دسوداگري توکيو په مخ د سوداگري تشهير لپاره انځورونه چاپوي او په دې توگه يې سپکاوی کوي.

په ځوانۍ کې يې په ډول ډول پلمو وغولوي، د کورني فطري ژوند، د خپلوۍ، کورنۍ او بچوله مينې يې محرومه او بې برخې کړي، د جنسي غريزې دتسکين لپاره د مترفينو په هوټلونو او د عفت او عزت د پلورلو په جنسي بازارونو کې ديوې ناڅيزه متاع په توگه سپکه او ورکه شي؛ د ځوانۍ د جنسي بې لارۍ له امله د ايډز غوندې مهلکو ناروغيو او د زړ بودۍ د بې وسۍ او بې وزلۍ له ستونزو سره يې بې اسرې او نهيلې مخ کړي.

په غربي او بې دينه نړۍ کې ښځه د زړه سوي وړ ده؛ هلته ښځه له خپل عزت، وقار او عفت نه ناخبره او لرې ساتل شوې ده؛ د لوېديزې نړۍ ښځه دختيزې نړۍ د ښځې له وقار، خوشحالۍ او عزت نه د ډک کورني ژونده ناخبره ده.

دلوېديزې نړۍ ښځه له دې خبره نه ده، چې دختيزې نړۍ د ښځې د ژوند ټولې اړتياوې دپلار، ورور او مېړه په غاړه دي؛ هغه د مېړه له مينې د پلار له شفقت او مهربانۍ د ورور او د زوی له

احترام او دټولنې له عزت نه پوره او کره ګټه اخلي او د خوښۍ او وقار يو داسې فطري ژوند کوي، چې که د لوېديزې نړۍ ښځې ترې خبرې شي، نو ورته وبه پسخېږي . لوېديز کې د ختيز د ښځې د ژوندډېرحقيقتونه او واقعيتونه پټېږي او په غلط رنګ کې وړاندې کېږي. راځئ چې د ختيز د مسلمانې ښځې د ژوند او حقوقو ځينې بېلګې وڅېړو او هغه اړخونه وپلټو، چې لوېديز پرې ناسمې نيوکې کوي.

## د سړي امارت او سر پرستي

تر ټولو دمخه بايد په دې خبره پوه شوو، چې په اسلام کې امارت او حکومت مسؤليت دی، فضيلت نه دی.

او دا يوه فطري او طبيعي خبره ده، چې د انساني ژوند او انساني نړۍ د تنظيم او رغونې لپاره امارت او حکومت يوه اړتيا ده؛ که امير او مامور نه وي، نو ژوند او نړۍ کې به ډېرې ستونزې، کړاوونه او اختلافونه را ولاړ شي.

دا چې په نړۍ کې ګڼ امارتونه او ګڼ حکومتونه دي، څومره ستونزې اختلافونه او جګړې دي؟! که بېخي امارت او حکومت وجود ونه لري؛ بيا خو به نړۍ ګډه وډه ، بې نظمه او حيواني شي.

لکه څرنګه چې اسلام ټوله نړۍ يو کور، يو ولس، يو هېواد او يو دولت ګڼي او د دې يو هېواد او يو دولت لپاره يو عادل، عالم، پرهېزګار، مسؤليت پېژندونکی او متمکن خليفه او امير

ټاکي؛ همدارنګه د کورني ژوند دمنظمولو، پرمخ بېولو او رغولو لپاره یو مسؤل امیر، سر پرست اوحاکم ټاکي. او دا فطري او طبیعي خبره ده، چې ښځه او سړی نه په فطري جوړښت کې سره مساوي دي، نه په ځواک او استعداد کې او نه د ژوند په نورو ډېرو اړخونو کې؛ په دې کې شک نشته، چې انسانیت کې سړی او ښځه دواړه سره برابر او مساوي دی او دواړه انسانان دي؛ خو فطري توپیر هیڅوک نه شي مساوی کولی، ښځه نسبت سړي ته نازکبدنه او کمزورې ده، او سړی نسبت ښځې ته سخت او ځواکمن دی؛ پرتله او مقایسه د دوه جنسونو کېږي، په افرادو کې به ډېرې داسې ځینې ښځې وي، چې له ځینو سړیو نه به ځواکمنې وي؛ خو د دواړو جنسونو مقایسه چې کېږي، نو یواځې په انسانانو کې نه بلکه په ټولو ژویو اوحیواناتو کې نسبت ښځې ته نر ډېر غښتلی او ځواکمن وي. له همدې کبله بزګران د کښتونو د کرلو لپاره یېوې او کولبې په نرانو غویانو کوي؛ ښځې غواګانې یواځې دبچیو زېږولو او شېدو لپاره ساتي. که کله کوم بزګر د مجبورۍ له کبله دویم نر غوایي ونه لري او ښځې غواته اړ شي، نو بیا سربانډې په په جغ کې نیمه د غوا لور ته او یوه نیمه د نر غوایي لورته کړي . دا ځکه چې غوا کمزورې وي او غوایي سره مساوي نه شي چلېدی .

همدارنګه هغه درانه او ستونزمن کارونه چې سړي يې کولی شي، ښځې يې نه شي کولی؛ او هغه فطري کارونه، چې د ښځو په فطرت کې ایښودل شوي او کوي يې سړي يې نه شي کولی.

بچي زېږول د ښځې فطري دنده ده. که څوک وغواړي، چې په دې کې دې هم سړی او ښځه مساوي وي، نو دانه يوائې دا چې نه کېدونکی اوله فطرت خلاف دی، بلکه داسې مساوات غوښتل به له نړه حماقت نه پرته بل څه نه وي.

نو دکور د امارت دروند بار پورته کول او د کور اړتياوې پوره کول د ښځې له فطرت نه بېخي خلاف کار دی. ښځې ته حامله کېدل، بچي زېږول، بچي ته د تي او مينې ورکول، د بچي پالل او د دې ټولو په کولو کې سستي او ناروغۍ، کړاوونه او ستونزې ګالل ور په غاړه دي او له دې ټولو سره د کور د امارت دروند بار پورته کول، د اړتياؤ پوره کول، ګرمۍ او يخنۍ، باد او باران او ډول ډول ظروفو کې منډې تړړې، سفرونه او کړاوونه ګالل به په ښځې نړه ظلم او تېری وي.

که مونږ دا ووايو، چې ښځه دې بچي نه زېږوي يا دې له زېږولو نه وروسته ټوله پالنه سړي کوي، نو دابه هم له فطرت نه خلاف وي او هم به د دې معنی دا وي، چې دا نړۍ دې ړنګه شي، انساني نسل دې بند شي او انساني ژوند ته دې دپای ټکی کېښودل شي.

اسلام د سړي او د ښځې دې ټولو ظروفو ته کتلي او د کور د سرپرستۍ دروند بار يې د سړي په اوږو بار کړی دی، نو ځکه الله تعالی فرمايي:

"الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء".[1]

---

[1]- سورة النساء: ٣٤.

" سړي په ښځو ټينګ ولاړ سر پرستان دي".

د (قوامون) (ټينګ ولاړو حاکمانو او سرپرستانو) د لفظي او لغوی معني نه دا څرګندېږي، چې دا حکومت يو سخت مسؤليت دی. سړی به د ښځې د عزت ساتلو،خوراک، جامې، کور، درملو او نورو ټولو اړتياو او حقوقو دپوره کولو لپاره ټينګ ولاړ وي اوهيڅ بې غوري به پکې نه کوي.

د سړي او د ښځې د حاکميت او محکوميت په دې فطري تقسيم او وېش کې ګوتې وهل، په زوره د سړي او ښځې تر منځ دښمني پيدا کول دي. د ښځې او سړي تر منځ دخپلوۍ، مينې او محبت ټينګې او نه شلېدونکې اړيکې دي، دا د ښځې لپاره کوم عار نه دی، چې هغه د خپل محبوب مېړه، مشفق پلار، مهربان ورور، ګران زوی او يا بل خواخوږي له سرپرستۍ لاندې ژوند وکړي، د دې ټولې اړتياوې هغه پوره کړي او د دې د ټولو حقوقو پوره پوره خيال وساتي او بې غوره، بې سرپرسته، بې اسرې، نهيلې، بې وزله او بې وسه يې پرې نه ږدي. که باد وي که باران، که ساړه وی که ګرمي، که مزدوري کوي که تجارت؛ په هر حالت او هر ډول ظوفو کې سړی له خپل وس سره سم مکلف دی، چې دښځې او بچو اړتياوې به پوره کوي.

ښځه يا زما مور ده، چې اسلام راته د هغې په احترام او طاعت امر کوي او له پلار نه يې درې چنده زياته د احسان او ښېګړې وړ او مستحقه ګڼي.

یا مې خور ده، چې اسلام راته د هغې د حقوقو ورکولو، احترام، مهربانۍ، خواخوږۍ اوله ټولو حقوقونه د دفاع حکم کوي.

یامې لور ده، چې اسلام راته حکم کوي، چې په ژوند وربانديې شفقت وکړم، له زوی سره یې برابره وګڼم اړتیاوې یې پوره کړم او دمینې محبت او مهربانۍ سیوری پرې وکړم.

یامې ښځه او د ژوند ملګرې ده، چې اسلام راته حکم کوي، چې د هغې له پت، عزت او عفت نه دفاع وکړم، خرڅ او خوراک، جامه او درمل، کور او نورې اړتیاوې یې پوره کړم، حق مهریې ورکړم، هغې او د هغې له بچو سره د مینې، محبت، مهربانۍ، خواخوږۍ او مشورې ژوند وکړم او دهغوی د اړتیاو په پوره کولو، دمینې سر پرستۍ او نورو ټولو حقوقو په ادا کولو کې هیڅ ډول بې غوري ونه کړې. او زه هم د یوې ښځې زوی، د بلې ورور د بلې پلار او د بلې مېړه یم.

نو کله چې اسلام زما او د ښځې تر منځ د ټولو فطري ظروفو خیال ساتلی دی، زما او دهغې تر منځ یې دومره پخې د خپلوۍ او مینې اړیکې ټینګې کړې دي او ښځې ته یې دومره امتیازونه ورکړي دي، نو ولې مونږ پردیو او زمونږ دښمنانو ته د دې فرصت ورکړو، چې زمونږ تر منځ تېږې وټکوي او زمونږ نېکمرغه ژوند له بدمرغۍ او ستونزو سره مخ کړي!!!.....

ای دختیزې نړۍ ښځو! ستاسو عزت، وقار، او حقوق چې په اسلام کې څومره خوندي دي؛ بل هیچا نه دي خوندي کړي. مونږ ستاسو په عزت او عفت خپل سرونه او مالونه ښندو، تاسو په خپل

کور کې د مور، خور، لور او ښځې په حيث محترمې محتشمې او معززې اوسېږئ، د زامنو، ورونو، پلرونو او مېړونو مينې او محبت ته اوزګارې يئ او د بهر ټول درانده پېټې زمونږ د نارينه ؤ په اوږو بار دي؛ که تاسو د اړتيا لپاره سفر کوئ، نو موټر، بس او نورو کې محترم ځای تاسوته درکوو؛ که تاسو ډک بس ته راپورته شئ، نومونږ ودرېږو؛ خو تاسو په چوکۍ کېنوو او د غريبانو غوندې تاسو بسونو کې ودرول خپل سپکاوی ګڼو، مونږ يې په باد او باران، ګرمۍ او يخنۍ، په پور او په کړاو ګټو او پيدا کوو او په کور کې يې ستا په واک کې درکوو او بيا ستا لاس ته اړيوو، تاته انتظار کوو؛ ستا د ټولو اړتياو پوره کول اسلام زما په غاړه را اچولي دي، تاته يې د جنسي او نورو ټولو اړتياو د پوره کولو او د خوشحاله ژوند تېرولو لپاره د واده عزتمنده پتمنه او د خوښۍ او وقار نه ډکه لار پرانستې او ستا، ستا د مور او پلار په خوښه ده، تا هيڅوک په زوره نه شي ودولی. په بدو کې ستا ورکول سراسر له اسلام نه خلاف دي. ستا پلورل او ستا په سر ولور اخيستل سراسر ناروا او حرام دي. په تاچې دودونو کوم بنديزونه لګولي او ستا حقوق چې رواجونو ړنګ کړي؛ هغه له اسلام نه مه ګڼه.

ای د ختيز مسلمانو ښځو! د دودونو د ناخوالو او خرافي رواجونو سره سره، چې ستاسو کوم د عزت او وقار ژوند دی؛ د لوېديز ښځې له هغه نه بې برخې او محرومې دي.

ختيز کې په ځوانۍ کې ښځه د مينې، محبت نه ډک د واده د ګډ ژوند يو مظهر دی او په زړبودۍ کې د احترام وړ.

د ختیز ښځه چې څومره زړېږي؛ احترام یې زیاتېږي. آیاتاسو نه دي اورېدلي چې د ختیز وګړي جنت دمور له پښو لاندې ګڼي؟.

دختیز وګړي زاړه مور او پلار د برکت او خیر باعث او لامل ګڼي او د قدر، عزت او احترام په سترګه ورته ګوري.

خو لویدیز کې ښځه د ځوانۍ په وخت کې د جنسي غریزو او نفسي غوښتنو د پوره کولو وړیا متاع بولي او له هر ډول عزت، عفت، عظمت، حشمت او وقار نه محرومه او تېروتې یې ساتي. او په زړبودۍ کې دې ته هم تیار نه وي، چې خپل زاړه مور او پلار په کور کې پرېږدي، بلکه هغوی په زړبودۍ کې د خیر یه مؤسسو او حکومتي ادارو په کمپونو او مرکزونوکې خیراتونو ته سترګې په لار وي. د خپلو بچو او لمسوله مینې او احترام نه محروم اولرې، دهیڅ ډول احترام او عزت وړ نه ګڼل کېږي!.

## په جاهلیت کې د ښځې سپکاوی

له اسلام نه مخکې د جاهلیت په وخت کې د ښځې مقام ډېر لاندې او له سپکاوي نه ډک ؤ؛ لور عار او شرم ګڼل کېده، ښځې د حیض او نفاس په وخت کې له کورونو نه بهر په یو ګوښه ځای کې ساتل کېدې، له میراث نه محرومې وې، د تجارتي توکیو په څېر پلورل کېدې، له ټولو حقوقو نه محرومې وې ، ښځې ته په هیڅ حق چا اعتراف نه کاوه او په دې ټولو سربېره لورګانې په

کمکيتوب کې ژوندۍ له خاورو لاندې کېدې، په ګور منډل کېدې او ژوندۍ ښخېدې.

الله تعالی فرمايي:

"وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُمْ بِالأُنثَى ظَلّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ يَتَوَارَى مِنَ الْقَوْمِ مِن سُوءِ مَا بُشِّرَ بِهِ أَيُمْسِكُهُ عَلَى هُونٍ أَمْ يَدُسُّهُ فِي التُّرَابِ أَلاَ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ".[1]

"او کله چې د دوی کوم يوکس ته د جلۍ زيری ورکول شي، نو مخ يې تک تور شي او خفه وي، د بد زيري له امله له خلکو نه پټېږي (او فکر کوي چې) آيا له سپکاوي سره يې وساتي او که په خاورو يې ومنډي؟ خبر اوسئ! دوي چې کومه پرېکړه کوي؛ هغه ډېره ناوړه ده".

نو له اسلام نه مخکې د ښځو دا حال ؤ او ډېرې لوڼې ژوندۍ په خاورو منډل شوې دي. اسلام چې کله راغی؛ ښځو ته يې عزت ورکړ، ميراث يې ورته وټاکه، ټول حقوق يې ورکړل. د ژونديو په خاورو د منډل شويو لورګانو په هکله يې وفرمايل:

؛وَإِذَا الْمَوْؤُودَةُ سُئِلَتْ بِأَيِّ ذَنبٍ قُتِلَتْ".[2]

"اوکله چې ژوندۍ په خاورو منډل شوې جلۍ وپوښتل شي، چې په کومه ګناه وژل شوې ده؟!".

په غربي نړۍ کې تر ډېره وخته په دې کې اختلاف و، چې ښځه انسان وګڼي او که نه!؟.

[1]- سورة النحل: ۵۸- ۵۹.

[2]- سورة التكوير: ۸- ۹.

اوس هم په غير اسلامي ټولنو کې له ښځو سره جاهلي سلوک کېږي؛ خو يواځې نوم او طريقه يې بدله ده.

په غربي او کفري نړۍ کې ښځه ډېره سپکه ده، دا خپله له ښځو سره بېلوونکی او ناوړه سلوک دی، چې د ښځو په نامه دې يوه ورځ وي او نوره دې د نارينه په لاس کې يوه نانځکه وي!!!.....

که د غربي نړۍ مظلومې ښځې په اسلام کې د ښځې له درناوي خبرې شي، نو ټولې به مسلمانې شي، هغوی د خواخوږۍ وړ دي، هغوی بې وزلې اوسپکې دي او د اسلامي نړۍ ښځې محترمې، محتشمې، درندې، پتمنې دي. پت، عزت، عفت او ټول حقوق يې خوندي دي.

## په اسلام کې د ښځې لوړ مقام

لکه مخکې مو چې وويل او وروسته هم دا خبره ځېړل کېږي، چې اسلام ښځې ته ډېر لوړ مقام ورکړ، ښځه يې د جاهليت له سپکاوي نه را وايسته او خپل د وقار او عزت مقام کې يې و دروله.

د مسلمان او مسلمانې په حيث نر او ښځې ته يو ډول کتل شوي دي. په قرآن کريم کې د ښځو په نامه يو سورت نومول شوی دی، چې (سورة النساء) (د ښځو سورت) بلل کېږي او له فطري جوړښت او توپيرونو نه پرته هغه ټول خطابونه چې نارينه ؤ ته دي؛ ښځينه ؤ ته هم دي او په دې سربېره په ډېرو ځايونو کې ښځې له

سړیو سره سمې اویو ډول یادې شوې دي، چې ځینې بېلګې یې دا دي:

الله تعالی فرمایي:

"مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ مَا كَانُواْ يَعْمَلُونَ".[1]

" په نارینه او ښځینه کې، چې څوک مؤمن وي او نېک عمل یې وکړ، نو مونږ به یې هرومرو په پاک ژوند ژوندی کړو او هغوی ته به خامخا د هغوی د هغو ښو کړو خپلې بدلې ورکړو، چې هغوی کول".

نو دلته دنارینه او ښځینه یادونه او د ښو عملونو بدله ورکول په یو ډول شوي دي.

همدارنګه فرمایي:

"إِنَّ الْمُصَّدِّقِينَ وَالْمُصَّدِّقَاتِ وَأَقْرَضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَاعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ".[2]

"دا جوته ده، چې خیرات ورکوونکي سړي، خیرات ورکوونکې ښځې او هغه خلک چې الله ته یې ښه پور ورکړی دی؛ هغوی لپاره ثوابونه څوچنده کېږي او هغوی لپاره عزتمنده بدله ده؛.

او فرمایي:

---

[1]- سورة النحل: ۹۷.

[2]- سورة الحديد: ۱۸.

؛إنّ الْمُسْلمينَ وَالْمُسْلمَات وَالْمُؤْمنينَ وَالْمُؤْمنَات وَالْقَانتينَ وَالْقَانتَات وَالصّادقينَ وَالصّادقَات وَالصّابرينَ وَالصّابرَات وَالْخَاشعينَ وَالْخَاشعَات وَالْمُتَصدّقينَ وَالْمُتَصدّقَات وَالصّائمينَ وَالصّائمَات وَالْحَافظينَ فُرُوجَهُمْ وَالْحَافظَات وَالذّاكرينَ الله كَثيراً وَالذّاكرَات أعدّ الله لهم مّغْفرَةً وَأجْراً عَظيمًا "١

" دا جوته ده، چې مسلمانان سړي او مسلمانانې ښځې، مؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې، غاړه ايښودونکي سړي او غاړه ايښودونکې ښځې، رېښتيني سړي او رېښتينې ښځې، صبر کوونکي سړي او صبر کوونکې ښځې، عاجزي کوونکي سړي او عاجزي کوونکې ښځې، خيرات ورکوونکي سړي او خيرات ورکوونکې ښځې، روژه نيوونکي سړي او روژه نيوونکې ښځې، د خپلو عورتونو ساتونکي سړي او ساتونکې ښځې، او الله ډېر يادوونکي سړي اوډېرې يادوونکې ښځې چې دي؛ الله دوی لپاره ښښنه او لوی اجر تيار کړی دی".

دلته هم الله تعالی سړي او ښځې په ښو ځانګړتياو او په اجر کې يو ډول او برابر ياد کړي دي.

همدارنګه فرمايي:

"وَمَا كَانَ لمُؤْمنٍ وَلاَ مُؤْمنَة إذَا قَضَى الله وَرَسُوله أمْرًا أن يَكُونَ لهمُ الْخيَرَةُ منْ أمْرهمْ وَمَن يَعْصِ الله وَرَسُوله فَقَدْ ضَلّ ضَلاَلاً مُّبينًا". ٢

---

[1] - سورة الاحزاب:٣٥.
[2] - سورة الاحزاب: ٣٦.

"او کله چې الله او دهغه پېغمبر دکوم کار پرېکړه کړې وي، نو د مؤمن سړي او مؤمنې ښځې لپاره دا روانه دي، چې هغوی لپاره دې په خپل کار کې څه اختیار وي او چاچې له الله او د هغه له پېغمبر نه سرغړونه وکړه، نو هغه بې شکه په ښکاره توګه لارې بې لارې شو".

او فرمايي:

"وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوا فَقَدِ احْتَمَلُوا بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُّبِينًا".

"او هغه خلک، چې مؤمنانو سړيو او مؤمنانو ښځو ته بې له کومې ګناه کړاو رسوي، نو هغوی بې شکه تور او ښکاره ګناه په غاړه واخيسته".

او په پاکو ښځو د تور لګوونکيو په هکله فرمايي:

"وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاء فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً وَلاَ تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا وَأُوْلَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ".[1]

"او هغه خلک، چې په پاکلمنو ښځو تورونه لګوي او بيا يې څلور ګواهان رانه وړل، نو اتيا درې يې ووهئ، هيڅکله يې ګواهي مه قبلوئ او همدوی بدکاران دي".

او فرمايي:

"إِنَّ الَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ الْغَافِلاَتِ الْمُؤْمِنَاتِ لُعِنُوا فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ".[1]

---

[1]- سورة النور: ٤.

"هغه خلک چې په پاکلمنو، ناخبرو، مؤمنو ښځو تورونه لګوي؛ په دنيا او آخرت کې په لعنت شوي دي او د هغوی لپاره لوی عذاب دی".

او په آخرت کې د مؤمنانو سړيو او ښځو حال په دې ډول يو رنګه څرګندوي:

"يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ يَسْعَى نُورُهُم بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِم بُشْرَاكُمُ الْيَوْمَ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنهارُ خَالِدِينَ فِيهَا ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ".[۲]

"په هغه ورځ، چې مؤمنان سړي او مؤمناني ښځې به ګورې، چې د هغوی رڼا به د هغوی په مخکې اود هغوی ښيو طرفونو ته ځغلي. نن ورځ ستاسو زېری هغه جنتونه دي، چې ويالې پکې بهېږي، تل به پکې اوسئ او همدا لويه برياده".

او خپل پېغمبر ته فرمايي:

"وَاسْتَغْفِرْ لِذَنبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ".[۳]

"او دخپلې ګناه او د مؤمنانو سړيو او مؤمنانو ښځو لپاره ښښنه وغواړه".

او فرمايي:

"يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ عَلَى أَن لاَّ يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا وَلاَ يَسْرِقْنَ وَلاَ يَزْنِينَ وَلاَ يَقْتُلْنَ أَوْلادَهُنَّ وَلاَ يَأْتِينَ

[۱]- سورة النور: ۲۳.
[۲]- سورة الحديد: ۱۲.
[۳]- سورة محمد: ۱۹.

ببهتَان يَفْتَرِينه بَيْنَ أَيْدِيهِنّ وَأَرْجُلهِنّ وَلاَ يَعْصِينَكَ فِي مَعْرُوفٍ فَبَايِعْهُنّ وَاسْتَغْفِرْ لهنّ اللَّه إِنّ اللَّه غَفُورٌ رّحِيمٌ". ١

"ای پېغمبره ! کله چې تاته مؤمنانې ښځې راشي او په دې بيعت درسره کوي، چې له الله سره به هيڅ شی نه شريکوي، غلا به نه کوي، زنا به نه کوي، خپل بچي به نه وژني، او تور به نه لګوي، چې له خپلې مخې يې جوړوي او په نېکيو کې به له تاسر غړونه نه کوي، نو بيعت ورسره وکړه او له الله نه ورته ښښنه وغواړه، الله بې شکه ډېر ښښونکی او خورا زيات لوروونکی دی".

ټولو مؤمنانو ته نصيحت کوي او ښځې پکې په ځانګړې توګه يادوي او فرمايي:

"يَا أَيُّهَا الّذِينَ آمَنُوا لاَ يَسْخَرْ قَومٌ مّن قَوْمٍ عَسَى أَن يَكُونُوا خَيْرًا مّنهمْ وَلاَ نسَاءَ مّن نّسَاء عَسَى أَن يَكُنّ خَيْرًا مّنهنّ وَلاَ تَلْمِزُوا أَنفُسَكُمْ وَلاَ تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ بِئْسَ الاِسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الإِيمَانِ وَمَن لّمْ يَتُبْ فَأُولَئِكَ هُمُ الظّالِمُونَ". ٢

"ای مؤمنانو! يو قوم دې په بل باندې ملنډې نه وهي کېدی شي، چې هغوی له دوی غوره وي او نه دې ښځې له نورو ښځو پورې پيتموزې کوي، کېدی شي چې هغوی له دوی غوره وي. په خپلو ځانونو عيب مه لګوئ او نومونه مه خرابوئ. له ايمان نه وروسته د بدکارۍ نوم ډېر بد دی او څوک چې را ونه ګرځېد، نو همغوی ظالمان دي".

[1]- سورة الممتحنة:١٢.
[2]- سورة الحجرات: ١١.

دا او داسې نور ډېر نصوص په دې دلالت کوي، چې اسلام ښځوته زياته اعتنا او زيات اهميت ورکوي.

همدارنګه ښځو او دهغوی د مړونو د حقوقو په هکله شامله او جامعه پرېکړه کوي او فرمايي:

"وَلَهنّ مِثْلُ الّذِي عَلَيْهِنّ بِالْمَعْرُوفِ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنّ دَرَجَةٌ".۱

"او ښځو لپاره په ښه لاړ هغسې حقوق دی، لکه په دوی چې دي او د سړيو لپاره په دوی يوه پوړۍ ده".

نو لکه څرنګه چې مېړه په ښځې حقوق لري؛ همغسې ښځه هم په مېړه حقوق لري او د سړيو يوه پوړۍ او درجه هغه د سرپرستۍ او مسؤليت درجه ده، چې مخکې مو وڅېړله.

## د ميراث مساله

زه د دلائلو په رڼا کې په بشپړ مسؤليت او بشپړې دعوې او ذمه وارۍ سره وايم، چې اسلام ښځې ته له سړي نه زيات حقوق ورکړي دي. په نورو سربېره راځئ چې د ميراث هغه مسأله وڅېړو، چې د اسلام دښمنان يې ډېر مخې مخې ته کوي او دناپوهۍ له امله يې د ښځې په حق تېری ګڼي.

۱- سورة البقرة: ۲۲۸.

د اسلام دښمنان او په سرکې یې غربیان زمونږ موازین، ژوند او ثقافت په خپلو قیاسوي او زمونږ د ژوند له موازینو او ثقافت نه څوک پوره خبر نه دي، ځیني معاندین یې پټوي او چاچې د انصاف په سترګو مطالعه کړي؛ هغوی اسلام قبول کړی دی.

د ښځو میراث او ګڼو حقوقوته د جاهلیت دودونو غاړه نه ایښوده، اسلام د نورو حقوقو تر څنګ په میراث کې خورته د ورور نیمایي برخه ورکړه او دا عین عدالت بلکه ښځې ته له سړي نه زیاته برخه ورکول دي. راځئ چې دا خبره د یو مثال په ترڅ کې وڅېړو:

فرض کړو چې یو سړی مړ شو او له هغه نه یو زوی او یوه لور پاتې شول. او له سړي نه په میراث کې یواځې (۲۰۰۰۰) شپیته زره روپۍ پاتې شوې؛ په دې کې د ورور (۴۰۰۰۰) څلوېښت زره او د خور (۲۰۰۰۰) شل زره روپۍ میراث ورسېږد؛ اوس دې ورور او خور دواړوته راتلونکی ژوند ور تر غاړې دی.

راځئ چې دواړو ته تر ټولو د مخه د واده سر شته ونیسو.

فرض کړئ، چې د دغه وخت مهرونه (۲۰۰۰۰) شل زره او د واده مصرف هم شل زره روپۍ دی. د هلک واده چې تیار شو، نو شل زره یې خپلې ښځې ته په مهر کې ورکړې او شل زره یې په واده ولګولې؛ د واده په شپه د هلک په جېب کې د میراث یوه روپۍ هم پاتې نه شوه؛ خو په دې تش جېب اسلام هلک ته وایي، چې زیار به باسې، حلاله روزي به ګټې او د ښځې خرڅ خوراک، جامه، کور

درمل او ټولې اړتیاوې به پوره کوې او د ښځې د حقوقو په هکله به بې غوري نه کوې.

اوس د جلۍ دواده سرشته نیسو؛ اسلام دې جلۍ ته دپلار له میراث نه شل زره روپۍ جېب کې ور واچولې او په واده کې ټول مصرف یې په هلک ایښی دی؛ په دې سربېره به د دې جلۍ مهر هم د ورور د واده غوندې شل زره ونیسو، نو د واده په شپه اسلام څلوېښت زره روپۍ د جلۍ په جېب کې ور واچولې او په دې ډک جېب باندې اسلام د هیڅا نفقه خرڅ او خوراک یا دنورو اړتیاو پوره کول نه دي فرض کړي بلکه دا دجلۍ یوزیاتي مال دی، چې په لګولو کې یې بشپړه خپلواکه ده؛ حتی چې د دې جلۍ نفقه او ټولې اړتیاوې اسلام په مېړه ایښې دي او د پلار او ورونو ښېګړه پرې سربېره ده.

اوس نو ووایئ، چې د ښځې میراث د سړي په نیمایي ډېر دی او که لږ؟! غربیان د ژوند ټولو اړخونو او د اسلام ټولو ټاکلیو حقونو ته نه ګوري. هغوی خو دښځې نفقه او د ټولو اړتیاو پوره کول په ځان فرض نه ګڼي؛ بلکه ښځه مکلفه ګڼي، چې که حامله وي او که تي خوری بچی ولري؛ هر وخت به کار کوي او خپله روزي به پخپله ګټي، بلکه ډېرو ښځوته د مړونو او اولادونو نفقه هم ورپه غاړه ده.

اسلام د ښځې ټولې اړتیاوې د نارینه په غاړه اچولې دي او سړی یې مکلف کړی دی، چې هغه به هرومرو پوره کوي او په دې سر بېره فرمایي:

؛للرّجَال نَصيبٌ مّمّا تَرَكَ الْوَالدَان وَالأقْرَبُونَ وَللنّسَاء نَصيبٌ مّمّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالأقْرَبُونَ مِمّا قَلّ مِنه أوْ كَثُرَ نَصِيبًا مّفْرُوضًا". ۱

" مور او پلار او خپلوانو چې کوم مال په ميراث کې پرې ايښی وي؛ په هغو کې لږ وي او که ډېر؛ د سړيو خپله ونډه ده او د ښځو خپله. ټاکل شوې برخې دي".

نو په دې سربېره، چې د ښځو د ټولو اړتياو پوره کول اسلام پر نارينه فرض کړي دي، ميراث کې يې هم ونډه ورکړې ده . ښځه کولای شي، چې مال ولري، تجارت وکړي او په خپل مال کې په خپله خوښه ازاد تصرف وکړي.

الله تعالی فرمايي:

"للرِّجَالِ نَصِيبٌ مِمّا اكْتَسَبُواْ وَلِلنِسَاء نَصِيبٌ مِمّا اكْتَسَبْنَ". ۲

"سړيو چې کوم مالونه ګټلي دي؛ هغوی لپاره خپله برخه ده او ښځو چې کوم مالونه ګټلي دي هغوی لپاره خپله برخه ده".

همدارنګه دميراث په مسائلو کې داسې صورتونه هم شته چې د نارينه او ښځينه ونډه سره مساوي ده؛ د ساري په توګه: که يو څوک ومري او نارينه اولاد ولري؛ د هغه د مور او پلار ونډې يو برابردي، چې هر يو شپږمه شپږمه اخلي، نور صورتونه هم شته.

[1]- سورة النساء: ۷.
[2]- سورة النساء: ۳۲.

نو اسلام د نارينه او ښځينه ټول اړخونه په دقت څېړلي او هر چاته يې خپل حق ورکړی دی او په انصاف او عدالت يې ورکړی دی.

څرنګه به د عدالت نه وي؟! چې د کائناتو خالق ورته ټاکلي دي.

## د شهادت مساله

د ګواهۍ مسأله کې چې اسلام د يو سړي او دوه ښځو ګواهي مساوي کړې ده؛ دايې هم له ښځې سره ښه کړي دي؛ ځکه چې شهادت او ګواهۍ کې څه امتيازات، کوم انعام، کومه اجوره او يا کومه تنخا نشته؛ بلکه ګواهي کول يو دروند پېټی او د کړاو ګالل دي، کله چې قاضي ګواهان وغواړي، نو ساړه وو او که ګرمي، باد ؤ او که باران، لرې ؤ او که نږدې؛ ګواه به حاضرېږي. اسلام د ښځې نازکبدنۍ اوکمزورۍ ته کتلي دي، د ګواهۍ پېټی يې نيم ورپه اوږو کړی دی او د ټول پېټي د وړلو لپاره يې ورسره بله ملګرې ټاکلې ده. همدارنګه دخبرې د وريادولو او د ملاتړ لپاره يې ورسره ملګرې ټاکلې ده.

د دې مثال داسې دی لکه چې دوه ډکې بوجۍ وي ، د دواړو يو ډول وزن وي او يو ځای ته د وړلو ضرورت يې وي، نو اسلام سړي ته وايي چې ته دا يوه بوجۍ په يواځې ځان واخله او دوه ښځوته وايي چې تاسو دواړه نيمه نيمه بوجۍ بارکړئ؛ اوس نو

ښځو ته په کار دي، چې خوشحاله شي او که خفه؟ او آيا اسلام د پېټې په سپکولو او نيمولو له دې ښځو سره ښه وکړل که بد؟.

څرګنده او ښکاره خبره ده، چې اسلام پر سړي درونډ او بشپړ پېټې وربار کړ او پر ښځو سپک او نيم.

اسلام ښځې ته په درنده سترګه ګوري اود هغې ټول ظروف او شرائط په نظر کې نيسي. په هر ځای کې اسلام ښځې ته د عدالت له غوښتنو سره سم حقونه ورکړي دي.

غربيان دا ولې له پامه غورځوی او نه يې يادوی، چې اسلام د پلار په پرتله مور درې چنده زياته د احسان او ښېګړې حقداره ګڼي؟ آيا مور هم ښځه نه ده؟.

همدارنګه ځينې داسې صورتونه شته چې اسلام يواځې د يوې ښځې شهادت هم قبلوي؛ لکه: د رضاعت (تي ورکولو) مسأله کې يا ځينو نورو نسائي او ولادي مسائلو کې چې تفصيل يې د اسلام په کتابونو کې شته.

## د ښځو د تعدد مساله

بله مسأله چې د اسلام ناپوهه او معاند دښمنان يې پورته پورته، بوڅه بوڅه او مخې مخې ته کوي؛ هغه دا ده، چې ولې سړي ته تر څلورو ښځو اجازه ده؟.

دا هم د اسلام د عدالت، انصاف او د رغونې او کور جوړونې يوه برخه ده؛ خو ضروري نه ده. د خپلو شرطونو او شرائطو

لاندې اسلام سړي ته ترڅلورو پورې د ښځو کولو اجازه ورکړې ده او فرمايي:

"فَانكِحُواْ مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاء مَثْنَى وَثُلاَثَ وَرُبَاعَ".[1]

"څومره مو چې خوښې وي؛ دوه دوه، درې درې او څلور څلور ښځې په نکاح واخلئ".

خو د اسلام دين ټولو سره د عدل کولو حکم کوي او که څوک عدل نه شي کولی، نو بيا ورته فرمايي:

"فَإِنْ خِفْتُمْ أَلاَّ تَعْدِلُواْ فَوَاحِدَةً".[2]

"که وېرېدئ، چې عدل به ونه کړئ، نو بيا يوه ښځه وکړئ".

اوس چې يو سړی بدني او مالي وس ولري او د يوې په ځای دوه، درې يا څلور ښځې وکړي او هرې يوې ته کور، خرڅ او خوراک، جامه او علاج او ټولې اړتياوې د برابرۍ، مساوات او عدل پر بنسټ يو ډول پوره کوي او تردې چې د شپې تېرولو او جماع په کولو کې هم ټولو ته په يوه سترګه ګوري او هرې يوې سره د برابرۍ پر بنسټ يوه يوه شپه تېروي؛ نو په دې کې کومه بدي ده؟

دا چې اسلام د ښځې د ټولو اړتياؤ پوره کول په سړي ايښي دي او بيا يې د ټولو بدني او مالي اړتياو د پوره کولو او د عدل له شرطونو لاندې يو سړي ته تر څلورو ښځو اجازه ورکړې ده، نو دايې له ښځو سره ښه کړي دي ، د ښځو د سرپرستۍ او د اړتياو غم يې خوړلی دی، د ښځو د سرسيوری يې پيدا کړی دی او ښځې يې د

---

[1]- سورة النساء: ٣.
[2]- سورة النساء: ٣.

بې وسې او بې وزلۍ په حال کې بې سر پنا او بې اسرې نه دي پرې ايښې.

دا يوه فطري او طبيعي مسأله ده، چې ښځې له نارينه ؤ زياتې وي، نارينه ؤ ته درانده درانده کارونه او جنګونه ورتر غاړې دي او له مړينې سره هم زيات مخ کېږي، نو که اسلام يو نارينه ته له يوې ښځې نه د زياتو اجازه نه واى ورکړې؛ د دې معنى به دا وه، چې په بشري ټولنه کې دې له نارينه ؤ نه زياتې ښځې بې سر پرسته، بې مېړه بې اسرې او بې وزلې وي. او دا کار به له عدل او انصاف نه خلاف او يو ډول ظلم ؤ، نو له همدې امله اسلام نارينه ؤ ته دا دروند بار په اوږو کړ او د يوې په ځاى يې د وس مناسب د دوه، درې يا څلورو ښځو سرپرستي او د بدني او مالي اړتياو پوره کول نارينه ته ورپه غاړه کړل، نو آيا دا له ښځو سره ښېګړه شوه او که د هغوى په حق تېرى؟ د عقل، فهم او عدل خاوندان به هيڅکله دا ونه وايي، چې داد ښځو په حق تېرى دى.

له همدې امله په اسلامي ټولنه کې نسبت غير اسلامي ټولنو ته بې سر پرسته او بې اسرې ښځې يا بېخي نشته او يا دنشت برابرې دي.

همدارنګه جنسي بې لارې، اخلاقي فسادونه او ټولنيزې ستونزې هم په اسلامي ټولنه کې نسبت غير اسلامي ټولنو ته د نشت برابرې دي.

او دا ټولې ستونزې که په کومو ټولنو کې وي، نو هغوى به اسلام ته شاکړې وي. دا مشاهدې او تجربې ثابته کړې ده، چې

مسلمانان په کوم کچ تولنيزې او فردي ستونزې لري؛ کافران يې تر هغو ډېرې زياتې لري. او ترکومه چې مسلمانانو په اسلام عمل کړی دی؛ په همغه کچ ستونزې هم نه لري. او څومره چې له اسلام لرې شوي دي او له اسلام نه يې سرغړونه کړې ده؛ همغومره يې ستونزې هم زياتې شوې دي. مونږ وايوو: راځئ اسلام مطالعه کړئ او د اسلام له ښېګړو او محاسنو نه ځان خبر کړئ. مسلمانان مه ګورئ ځکه چې په مسلمانانو کې به له اسلام نه انحراف او سرغړونه وي؛ هغه به په ناپوهۍ له اسلام نه وګڼئ ، دا به د حق دين دمنلو په لار کې خنډ شي او له لوی خير او د دنيا او آخرت له بريا نه به بې برخې او محروم شئ.

همدارنګه داخبره چې ښځې ته له يوه مېړه زيات ولې روانه دي؟! داهم يو فطري، طبيعي او دعدل په بنسټونو برابره خبره ده.

داخبره له يوه پلوه نسلونه، کورنۍ او تولنيز ژوند رنګوي، ستونزې او شخړې را ولاړوي، د مينې، محبت او خپلوۍ غښتلي، منلي او کوتلي بنسټونه نړوي؛او له بله پلوه د طب لابراتوار (ليبارټرۍ) په تجربو، مشاهدو او دليلونو دا خبره ثابته کړې ده، چې که يو سړی له څلورو ښځو سره جنسي اړيکې ولري؛ دا د طب په بنسټونو هيڅ کومه ناروغي، تولنيزه او د چاپېريال ککړتيا نه پيدا کوي؛ خوکه له يوې ښځې سره له يوه زيات نارينه جنسي اړيکې ولري، نو له دې ډول ډول ناروغۍ، تولنيزې اود چاپېريال ککړتياوې پيدا کېږي او تر ټولو لويه ستونزه د (ايډز) ناروغي ده، چې له همدغو جنسي ګډوډيو نه راپيدا کېږي او د ايډز ناروغي د

انساني ټولنې لپاره دومره لویه ستونزه ده، چې هر کال ترې په میلیونونو انسانان مري او تر اوسه یې هیڅ درمل نه دی پیدا شوی.

د ایډز درمل اسلام دی؛ له نن څخه څه دپاسه څوارلس سوه کاله وړاندې اسلام داسې ټولنیز قوانین او پاخه بنسټونه ټاکلي دي، چې که هغه عملي شي، نو هېڅکله به د ایډز ناروغي او نورې ستونزې پیدا نه شي.

اسلام حکم کوي، چې ښځه به له یوه زیات مړونه نه کوي او له خپل مېړه پرته به له بل چاسره جنسي اړیکې نه ساتي؛ له نارینه ؤ یا له ښځو سره په (دبر)کې او له حیواناتو سره به جنسي عمل نه کوي او زنا به نه کوي. دا د ایډز او نورو ستونزو دمخنیوي لپاره یو مسلم او منل شوی بنسټ او قانون دی.

همدارنگه کومه ښځه چې کونډه شي او مېړه یې ومري؛ هغه که امیدواره وه، نو کله یې چې ماشوم وزېږېده او له نفاس پاکه شوه؛ له بل مېړه سره نکاح کولی شي او که امیدواره نه وه، نو څلور میاشتې اولس ورځې به صبر کوي. دې ته (عدت) وایي. کله یې چې دغه عدت تېر شو،نو بیا له بل مېړه سره نکاح کولی شي او په دې دواړو صورتونو کې له خپل وخت نه مخکې نکاح نه شي کولی. دا د اسلام د پاکۍ یو ښکلی بنسټ دی، چې په دې ترتیب د ښځې رحم پاک شي، د مخکني مېړه د جنسي اړیکو آثار له منځه لاړ شي، نو اوس دا دوهمه نکاح د کومې ناروغۍ یا ستونزې لامل نه جوړېږي.

الله تعالی فرمایي:

"وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَاللهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ".[1]

" او هغه کسان چې له تاسو نه مري او ښځې پرېږدي، نو ښځې به يې په خپلو ځانونو څلور مياشتې او لس ورځې انتظار کوي؛ کله چې خپلې نېټې ته ورسېږي؛ که د خپلو ځانونو په هکله يې کومه ښه پرېکړه وکړه، نو په تاسو يې څه باک نشته او تاسو چې څه کوئ؛ الله پرې ښه خبر دی".

او د طلاقې شوې حکم دادی؛ چې که اميدواره وه، نو چې بچی يې وزېږېده او له نفاس نه پاکه شوه؛ نکاح کولی شی. او که اميدواره نه وه، نو چې درې ځل له حيض نه پاکه شي؛ بيا نکاح کولی شي.

الله تعالی فرمايي:

"وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلاَثَةَ قُرُوءٍ".[2]

" او طلاقې شوې ښځې به په خپلو ځانونو درې پاکۍ انتظار کوي".

معني دا چې درې ځل يې حيض راشي او بيا پاکه شي.

او د کومو ښځو چې د عمر د زياتوالي له امله حيض بند شوی وي، يا يې لا حيض نه وي راغلی او جلۍ وي، نو د هغوی عدت درې مياشتې دی.

---

[1]- سورة البقرة: ٢٣٤.
[2]- سورة البقرة:٢٢٨.

الله تعالى فرمايي:

"وَاللاَّئِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِن نِّسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلاَثَةُ أَشْهُرٍ وَاللاَّئِي لَمْ يَحِضْنَ".[1]

"او ستاسو هغه ښځې، چې د حيض له راتلو نه نهيلې شوې وي او هغه چې حيض يې نه وي راغلى، نو كه حيران وئ؛ د هغوى عدت درې مياشتې دى".

او د اميد وارو په هكله فرمايي:

"وَأُوْلَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهنَّ أَن يَضَعْنَ حَمْلَهنَّ".[2]

"اود اميدوارو ښځو نېټه دا ده، چې خپل بچي وزېږوي".

دا ټولې هغه لارې چارې، قوانين او احكام دي، چې د ښځو د رحمونو د پاكۍ لپاره ټاكل شوي دي، چې له مخكني مېړه سره د جماع كولو ټول آثار له منځه لاړ شي او رحم پاک شي، نو بيا ورته اسلام له بل مېړه سره دنكاح اجازه وركوي.

كه دا اصول او بنسټونه پلي او عملي شي؛ نه به ايډز وي او نه بله كومه بلا او آفت.

همدارنګه د حيض او نفاس (د مياشتنۍ وينې او دزېږولو نه وروسته وينې) په وخت كې اسلام جماع او كوروالى كول حرام كړي دي، چې دا هم د اسلام د پاكۍ او حقانيت دليل دى.

الله تعالى فرمايي:

[1]- سورة الطلاق: ٤.
٢ - .سورة الطلاق:٤.

"وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُواْ النِّسَاء فِي الْمَحِيضِ وَلاَ تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّى يَطْهُرْنَ فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللّهُ إِنَّ اللّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ". [1]

"او تا د حيض په هکله پوښتي؛ ورته ووايه: دا يوه ککړتيا ده، نو له ښځونه د وينې د راتلو په وخت کې په ډډه شئ او تر هغې مه ورنږدې کېږي، تر څو چې ښې پاکې شي؛ کله چې پاکې شوې، نو له هغه ځايه ورته راشئ، چې الله درته امر کړی دی. الله بې شکه توبه کوونکي خوښوي او ځان پاکوونکي هم خوښوي.

او الله تعالی فرمايي:

"وَلاَتَقْرَبُواْ الزِّنَى إِنه كَانَ فَاحِشَةً وَسَاء سَبِيلاً". [2]

"او تاسو زناته مه نږدې کېږئ دا د ګناه کار دی او بده لار ده".

دا ټولې هغه لارې چارې او احکام دي، چې د اوسنۍ پرمختللې نړۍ په لابراتوارونو کې په مشاهدې او دليلونو ثابته شوې ده، چې که دا رعايت او عملي شي؛ نه به په ايډز څوک اخته شي، نه په بله بلا او نه به ډېرې ټولنيزې او ازدواجي ستونزې منځ ته راشي.

د ښځو لپاره له يو نه زياتو مېړونو دنه کولو بل حکمت دا دی، چې اسلام کورنۍ جوړولو او د نسلونو د نسبونو معلومولو او څرګندولوته زيات اهميت ورکوي او دا د ټولنې په ډېرو مسائلو

[1] سورة البقرة: ۲۲۲.
[2] ـ سورة الاسراء: ۳۲.

باندې اغېزه لري او د معرفت او شخصيت د تشخص لپاره ډېره اړينه او ضروري ده، که يو سړى څلور ښځې هم ولري، نو د هرې ښځې د هر بچي مور او پلار دواړه معلوم دي او هيڅ ډول ستونزه او تردد پکې نه پيدا کېږي؛ خوکه يوه ښځه له يونه زيات مېړونه وکړي او هغه بچى وزېږوي، نو دا بچى به کوم مېړه ته منسوبېږي؟ او د دې پلار به څوک وي؟ د دغه بچي تشخيص، نسب او توپير به څرنګه کېږي؟ او له دې تردد او شک نه به څومره ستونزې را ولاړېږي؟ که د دې بچي نوم شين ګل وي، نو له نورو شين ګلانو نه به څه ډول بېلېږي، که شين ګل د انعام وړ وګڼل شي، نو کوم شين ګل ته به ورکول کېږي؟ او که کوم جرم وکړي، نو کوم شين ګل به مجرم ګڼل کېږي؟ اسلام د انسان فطري ژوند او طبيعي ځانګړتياو ته اهميت ورکوي. او دا ځکه چې طبيعي او فطري مشخصات او ځانګړتياوې د غره په سر کې هم انسان سره تړلې دي او په هر ځاى، هره زمانه او د هر چا په هکله په اسانۍ پېژندل کېږي او هيڅ کوم لابراتوار، ماشين او ډاکټر ته اړتيا نه لري.

## طلاق

اسلام کوښښ کوي، چې د ښځې او مېړه کور جوړ کړي او د ښېګړې او مينې په فضا کې سره ژوند وکړي؛ خو که د ښځې او مېړه اړيکې تر دې بريده ناسمې وي، چې د دواړو يو ځاى ژوند تېرول سره ستونزمن وو، نو بيا يې د بېلېدو لارې ورته پرې ايښې

دي، چې يوه (طلاق) اوبله ( خلع) ده. طلاق اصلا کوم ښه کار نه بلکه دا يو مجبوريت دی. په حديث کې راځي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

"أبغض الحلال إلى الله الطلاق".[1]

"په حلالو کارونو کې، چې د الله ډېر بد راځي هغه طلاق دی".

نو بې ځايه او بې دليله طلاق ورکول ناوړه کار دی؛ خو د مجبوريت په وخت کې روا دی.

د ځينو اوسنيو طاغوتانو غوندې مخکې له مخکې د طلاقو په نيت نکاح ناروا ده. او دا عين هغه د متعې نکاح ده، چې د اسلام په لومړنيو کې روا وه او بيا منسوخ شوه؛ بلکه دا له هغې هم بتره او ناوړه ده. دا ځکه چې د متعې په نکاح کې ښځه او مېړه د خاص وخت او ځانګړې تاکلې مودې لپاره نکاح کوي او دواړه پرې خبر وي؛ خو دغه نااهله اميران د څکلو او حيواني شهوت د پوره کولو لپاره له وړاندې د طلاقو په نيت نکاح کوي او دا نيت له ښځې پټوي، چې دا ټګي او درغلي هم ده او په دې کې څو ډوله ناروا رايو ځای شوي دي. خو د ډېر افسوس خبره دا ده، چې د طاغوتانو تالي ختي ملايان د اميرانو د حيواني شهوتونو د پوره

[1]- رواه ابوداود والبيهقى وابن ابي شيبة والحاكم وقَالَ : هَذَا حَدِيث صَحِيح الْإِسْنَاد ، وَقَالَ الذَّهَبِيّ فِي (مُخْتَصر الْمُسْتَدْرك) : إِنَّهَ عَلَى شَرط مُسلم. و رواه ابن ماجة والدارقطني والطبراني والطرسوسي في مسنده وأبوالقاسم تمام الرازي في الفوائد وأخرجه الكلاباذي في معاني الأخبار وصححه صاحب البدرالمنير.

کولو لپاره خپل آخرت بربادوي او هغوی ته د دې کار د حلال ګڼلو فتوې ورکوي. إنالله وإنا إليه راجعون.

نو طلاق د هغه واده د اړیکو د بېرته پرې کېدو او د خلاصون یوه لاره ده، چې ښه په خوښه او مینه یې شرعي نکاح کړې وي او د څکلو او طلاقو په نیت نه وي؛ خو پېښه داسې وشي، چې د ښځې او مېړه اړیکې سره خړې پړې او ژوند یې تریخ شي، نو اسلام د خلاصون لار ورته پرې ایښې ده؛ خو اسلام کوښښ او هڅه کوي، چې د ښځې او مېړه اړیکې ښې شي، کور یې ړنګ نه شي او سره پاتې شي؛ نو طلاقو ته یې درې پړاوونه ټاکلي دي او د کور د بېرته رغونې لپاره یې مهلت او فرصت ورکړی دی.

د طلاقو شرعي او اسلامي طریقه دا ده، چې طلاق په درې ډوله دي:

(١) رجعي. (٢) بائن. (٣) مغلظ.

لومړی:

رجعي طلاق دا دي: په لومړي ځل چې کله ښځه له حیض څخه پاکه شي، نو له جماع کولو نه مخکې به طلاق ورکړي، یا که امید واره وه؛ هم طلاق ورکولی شي. اسلام له دې لومړي طلاق نه وروسته بیا هم مهلت ورکوي؛ که سره پخلا شول او رجوع یې وکړه؛ دواړه ښځه او خاوند دي. که سره پخلا نه شول او اړیکې هماغسې خړې پړې وې، نو دو همه میاشت کې به د پاکۍ یا حمل په وخت کې بل طلاق ورکړي؛ دا دوهم طلاق هم رجعي دی او اسلام

يو بل فرصت دوارو ته په لاس ورکوي؛ که سره پخلا شول او رجوع يې وکړه، نو د نکاح له تازه کولو نه پرته سره ښځه او خاوند دي. په لومړي طلاق کې د راتلونکي عمر لپاره مېړه د دوه طلاقو مالک دی؛ خو له دوهم نه وروسته بيا ورته يو پاتې دی.

دوهم:

بائن طلاق دا دي، چې که رجعي طلاق کې يې د عدت له (درې مياشتو) تېرېدونه مخکې رجوع ونه کړه، نو ښځه ورڅخه جلا شوه؛ خو که دعدت له تېرېدونه وروسته يې رجوع کوله، نو بيا به له سره نکاح تړي.

دريم:

مغلظ طلاق دا دی، چې له دوه رجعي طلاقونه وروسته سره پخلانه شي او رجوع ونه کړي، نو په درېمې مياشتې کې به د پاکۍ ياحمل په وخت کې طلاق ورکړي؛ دا تر ټولو سخت طلاق دي؛ نو ځکه ورته مغلظ (سخت) طلاق وايي.

له دريم طلاق نه وروسته اوس رجوع نه شي کولی او ښځه ازاده ده، چې له عدت نه وروسته بل مېړه کوي، نو کولی يې شي.

او په يو ځل درې طلاق سني طلاق نه دي، که يو ورکړي او که درې يا زيات؛ خو په يو ځل هماغه يو طلاق واقع کېږي اورجعي دی او دليل يې د مسلم او نورو کتابونو حديث دی.

له دريم مغلظ طلاق نه وروسته لومړي مېړه ته رجوع نه شي کولی؛ خو که بل مېړه يې وکړ او پېښه داسې شوه، چې له هغه سره يې هم وخت نه تېرېده او هغه په درې مياشتو کې درې مغلظ

طلاق ورکړل او عدت يې تېر شو، نو د ښځې خوښه ده، چې له لومړي خاوند سره بيا نکاح تړي؛ هم ترڅو چې دا شرط يې دا دی، چې دوهم خاوند ورسره جماع کړې وي.

خو که لومړي خاوند سره بيا نکاح نه غواړي، نو هيڅوک يې په زور نه شي ورکولې؛ بيا يې خوښه ده، چې دريم کوي، که نه يې کوي او که لومړي سره يې کوي.

خو د (حلالې) په نامه چې کومه ديوثي مشهوره ده، دا چې د يوې شپې يا يوې جماع لپاره ورسره نکاح وکړي، چې لومړي ته يې حلاله کړي؛ دا نه نکاح ده او نه پرې ښځه لومړي لپاره حلالېږي.

بلکه دا زنا، دووسي او بې غيرتي ده.

اکثرو عوامو په يو ځل درې طلاق ورکړي وي، نو دا يو رجعي واقع کېږي، د حلالې دووسي دې نه کوي، خپلې ښځې ته دې رجوع وکړي او نور هيڅ پرې نشته ؛ خو که له عدت نه زيات وخت پرې تېر شوی وي، نو يواځې د نکاح تجديد به وکړي او نور سره ښځه او خاوند دي.

اسلام د مجبورۍ او ناچارۍ په وخت کې سړي ته د طلاقو ورکولو واک ورکړی دی؛ خو د بچي تر زېږېدو پورې د ښځې اړتيا پوره کول په سړي فرض دي. او که بچي ته يې تی ورکاوه، نو تر دوه کلو پورې به خرځ خوراک، جامه او نورې اړتياوې ورپوره کوي.

د طلاقو ورکول هم په بداخلاقۍ او سختۍ نه دي، بلکه الله تعالی فرمايي:

"الطَّلاَقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ". ۱

"رجعي طلاق دوه ځل دي؛ بيا يې يا په ښه سلوک ساتل دي او يا يې له ښځې سره خوشې کول دي".

همدارنګه اسلام سړي ته حکم کوي، چې له طلاقې شوې ښځې نه به مهر يا بل کوم ورکول شوی او وربښلی مال نه اخلي.

"وَلاَ يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَأْخُذُواْ مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا". ۲

"او تاسو ته دا روانه دي، چې ښځو ته مو څه ورکړي وي؛ له هغې نه ترې څه واخلئ".

همدارنګه فرمايي:

"وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاء فَبَلَغْنَ أَجَلهنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوف أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوف وَلاَ تُمْسِكُوهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعْتَدُواْ وَمَن يَفْعَلْ ذَلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ وَلاَ تَتَّخِذُواْ آيَاتِ الله هُزُوًا". ۳

"اوکله مو چې ښځې طلاقې کړې او خپلو نېټوته ورسېدې، نو يا يې په ښه سلوک وساتئ او يا يې په ښه لاره خوشې کړئ. او د دې لپاره چې تېرې وکړئ؛ د کړاو رسولو لپاره يې مه ساتئ. چا چې دا کار وکړ، نو هغه پر خپل ځان ظلم وکړ او د الله آياتونه په ملنډو مه نيسئ".

همدارنګه فرمايي:

"وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاء فَبَلَغْنَ أَجَلهنَّ فَلاَ تَعْضُلُوهُنَّ أَن يَنكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ إِذَا تَرَاضَوْاْ بَيْنَهم بِالْمَعْرُوفِ" ۱

[1] - سورة البقرة: ۲۲۹.
[2] - سورة البقرة: ۲۲۹.
[3] سورة البقرة: ۲۳۱.

"او کله مو چې ښځې طلاقې کړې او خپلو نېټوته ورسېدې، نو که په خپلو منځوکې په ښه لار سره راضي وو؛ له دې يې مه منع کوئ، چې له خپلو مړونو سره نکاح وکړي".[1]

که د جماع او مهر له ټاکلو نه مخکې ښځې ته طلاق ورکړي، نو بيا به هم د وس مناسب څه ډالۍ ورکوي. الله تعالى فرمايي:

"لاجُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن طَلَّقْتُمُ النِّسَاء مَا لَمْ تَمَسُّوهُنُّ أَوْ تَفْرِضُواْ لَهُنَّ فَرِيضَةً وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدْرُهُ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِينَ".[2]

" او که تاسو له خپلو ښځو سره يو ځای شوي نه يئ او څه مهر مو ورته نه وي ټاکلی او طلا قې مو کړې، نو څه باک درباندې نشته، دې ښځو ته څهٔ ډالۍ ورکړئ؛ په بډای خپل کچ دی او په تنګلاسي خپل کچ دی. په ښه سلوک ډالۍ ورکول دي او په نېکانو حق دی".

که د مهر له ټاکلونه وروسته او له جماع نه مخکې يې طلاق ورکړ، نو بيابه نيم مهر ورکوي. الله تعالی فرمايي:

"وَإِن طَلَّقْتُمُوهُنَّ من قَبْلِ أَن تَمَسُّوهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ إَلاَّ أَن يَعْفُونَ أَوْ يَعْفُوَ الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ وَأَن تَعْفُواْ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى وَلاَ تَنسَوُاْ الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ إِنَّ اللّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ".[3]

---

[1]- سورة البقرة: ۲۳۲.
[2]- سورة البقرة: ۲۳۶.
[3]- سورة البقرة: ۲۳۷.

"او که له دې مخکې مو طلاقه کړه، چې کوروالی ورسره وکړئ او څه مهر مو ورته ټاکلی ؤ، نو د ټاکلي مهر نيمايي به ورکوئ. خو که ښځې څه وروبښي او يامېړه څه زيات وروبښي، نو خير دی. اوچې څه وروبښئ؛ دا پرهېزګارئ ته ډېره نږدې ده او په خپلو منځو کې ښېګړه کول مه هېروئ. تاسو چې څه کوئ؛ الله پرې بې شکه ښه ليدونکی دی".

همدارنګه په مهر سربېره هم طلاقو شويو ښځو لپاره ډالۍ ورکول دي.

الله تعالی فرمايي:

"وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ".[1]

"او طلاقو شويو ښځو لپاره په ښه لار څه ډالۍ ورکول دي دا په پرهېزګارانو حق دی".

او د طلاقو شويو نور حقوق داسې څرګند وي:

"أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ وَلَا تُضَارُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ وَإِن كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّى يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُم بِمَعْرُوفٍ وَإِن تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَى لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَا آتَاهَا سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا".[2]

[1]- سورة البقرة: ۲٤۱.
[2]- سورة الطلاق: ٦- ۷.

" د خپل وس مناسب چې تاسو کوم ځای کې اوسېږئ؛ هغوی هم هلته و اوسوئ. او د دې لپاره چې په هغوی تنګي را وړئ؛ کړاو ورته مه رسوئ. او که اميدوارې وې، نو تر هغې پرې خرڅ وکړئ، تر څو چې خپل بچی وزېږ وي. او که تاسو لپاره يې بچو ته تی ورکاوه، نو د هغوی تنخا ورکړئ او په خپلو منځوکې په ښه لار له دود سره سمه مشوره کوئ. او که سختي مو سره وکړه، نو بچي ته به بيا بله ښځه تی ورکوي . بډای دې له خپلې مالدارۍ نه لګښت کوي او په چاچې دهغه روزي تنګه شوې وي، نو له هغه دې ولګوي، چې الله ورکړي وي. الله يو څوک له هغې زيات نه مجبوروي، چې ورکړي يې دي. الله به له سختۍ وروسته اساني راولي".

له جماع نه مخکې طلاقې شوې ښځې باندې عدت نشته؛ هغه چې طلاقه شي سمدستي بل مېړه کولی شي.

الله تعالی فرمايي:

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنَات ثُمَّ طَلَّقْتُمُوهُنَّ من قَبْلِ أَن تَمَسُّوهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّونها فَمَتِّعُوهُنَّ وَسَرِّحُوهُنَّ سَرَاحًا جَمِيلاً".[1]

"ای مؤمنانو! کله مو چې مؤمنانې ښځې په نکاح کړې؛ بيا مو له کوروالي نه مخکې طلاقې کړې، نو تاسو لپاره په هغوی کوم عدت نشته، چې تېروئ يې، نو ډالۍ ورکړئ او په ښايسته خوشې کولو يې خوشې کړئ".

[1] - سورة الاحزاب: ٤٩.

# خُلع

د نکاح د تړون د پرې کولو او د خلاصون بله لار(خُلع) ده. لکه څرنګه، چې سړی د طلاقو واک لري؛ همدارنګه که ښځه له خپل مېړه سره خوشحاله نه وه، نو که مېړه هيڅ عيب هم ونه لري؛ ښځه ترې ځان د خُلعې په غوښتنې خلاصولای شي. (خلع) دې ته وايي، چې ښځه خپل خاوند ته ووايي:

تا چې ماته کوم مهر راکړی دی، هغه به بيرته درکړم؛ ماپرېږده، نو سړی مکلف دی، چې ښځه پرېږدي. بيا چې د ښځې عدت تېر شي؛ له بل چا سره نکاح کولی شي.

خو اسلام لومړی سړی دې ته هڅوي، چې د مروئت له مخې له ښځې نه هيڅ هم وانخلي او يا له مهر نه لږ واخلي؛ خو له مهر نه به زيات نه اخلي. او دا د غيرت او مروئت له مقتضا نه هم خلاف ده.

په طلاقو کې ښځې ته له دې امله واک نه دی ورکول شوی، چې دښځو انفعال او عکس العمل ډېر په بيړه وي او دا له ښځو سره ښېګړه ده. که ښځو ته د طلاقو واک ورکول شوی وای، نو طلاقو نه به ډېر زيات وو او بيا به پرې پښېمانه وې.

همدارنګه اسلام ښځې ته په درنده سترګه ګوري. ښځه يو محترم انسان دی او خپل حقوق لري. مال نه دی، چې يا وپلورل شي، يا په زوره چاته واده شي او يا يې څوک په ميراث يوسي.

الله تعالی فرمایي:

"یَا أَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُواْ لاَ یَحِلُّ لَکُمْ أَن تَرِثُواْ النِّسَاء کَرْهًا وَلاَ تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُواْ بِبَعْضِ مَا آتَیْتُمُوهُنَّ إِلاَّ أَن یَأْتِینَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَیِّنَةٍ وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ فَإِن کَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَى أَن تَکْرَهُواْ شَیْئًا وَیَجْعَلَ اللهُ فِیهِ خَیْرًا کَثِیراً".[۱]

"ای مؤمنانو! تاسو ته دا روانه دي، چې ښځې په زور په میراث یوسئ. او پرته له دې، چې ښکاره بدکاري وکړي، د دې لپاره یې له نکاح مه منع کوئ، چې هغوی ته مو څه ورکړي وي او له هغې نه څه یوسئ. له ښځو سره په ښه ګوزران ژوند تېروئ؛ که هغوی مو خوښې نه وې، نو کېدی شي، چې تاسو یوشی نه خوښوئ او الله پکې ډېر خیر واچوي".

## پرده کول

په دې کې هیڅ شک نشته او دا یو څرګند او جوت حقیقت او یو طبیعي فطرت دی، چې نارینه او ښځینه یو بل ته میلان لري، خوښوي یې او غواړي، چې یو تربله جنسي اړیکې سره ولري. او دا هم مونږ ګورو او یو منل شوی حقیقت دی، چې انسانان ټول په یو کچ عادلان او پرهېزګاران نه دي. او په انساني ټولنه کې ډېر تېری کوونکي، ظالمان، وحشي او بدمرغه انسانان شته، چې د خپلو

---

[۱]- سورة النساء : ۱۹.

نفسي غوښتنو او حيواني شهوتونو د پوره کولو لپاره په نورو تېرى کوي. نو که څه پولې، بريدونه اوقوانين ورته ونه ټاکل شي؛ انساني ټولنه به حيواني او وحشي شي او ډېرې پېچلې او ژورې ستونزې به رامنځ ته شي.

د ظلم، فساد، بدکارۍ او ورانکارۍ د مخنيوي لپاره اسلام له حکمت نه ډک بنسټونه او قوانين ټاکلي دي.

د دې لپاره، چې د ښځې له کمزورۍ او ضعف نه نارينه ناوړه ګټه وانخلي، د ښځې پت، عزت، وقار او حشمت خوندي شي او سړي هم له تېري، بدکارۍ ورانکارۍ او بې پتۍ نه وژغورل شي؛ اسلام نارينه او ښځينه دواړو ته وايي چې نامحرم ته مه ګورئ او ښځې ته له نامحرمو نارينه ؤ نه د پردې کولو حکم کوي.

الله تعالى فرمايي:

"قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذَلِكَ أَزْكَى لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ أَوْ أَبْنَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ أَوْ نِسَائِهِنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُوْلِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا عَلَى عَوْرَاتِ النِّسَاءِ وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ".[1]

---

[1]- سورة النور: ۳۰ – ۳۱.

" مؤمنانو سړيو ته ووايه، چې خپلې سترګې ښکته کړي او خپل شرمځايونه وساتي. دا د دوی لپاره ډېره د پاکۍ خبره ده. دوی چې څه کوي؛ الله پرې بې شکه ښه خبر دی. او مؤمنانو ښځو ته ووايه، چې خپلې سترګې ښکته کړي، خپل شرمځايونه وساتي، او له برسېره پرته دې خپله ښکلا نه څرګندوي ، څپتې (پوړنۍ) دې په خپلو سينو راخواره کړي او له خپلو مړونو، پلرونو، سخرانو، زامنو، بنزيو، ورونو، وربېرونو، خورينو، مسلمانو ښځو، وينځو، بې شهوته خادمانو او هغو ماشومانو نه پرته، چې د ښځو په پټو خبرو لا خبر نه وي، بل چاته دې خپله ښکلا نه څرګندوي؛ او د دې لپاره دې خپلې پښې بې دريغه نه وهي، چې خپل پټ سينګار يې معلوم شي. او ای مؤمنانو! ټول الله ته را وګرځئ، ښايي چې بريالي شئ ".

نو ښځه به په دې آية کې له يادو شويو سړيو نه پرته له نورو پرده کوي.

همدارنګه فرمايي: "يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاء الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ذَلِكَ أَدْنَى أَن يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللَّهُ غَفُوراً رَّحِيمًا". [1]

"ای پېغمبره! خپلو ښځو، لوڼو او د مؤمنانو ښځو ته ووايه، چې په خپلو ځانونو خپل لوی څادرونه را واچوي. دا دې ته ډېره نږدې ده، چې وپېژندل شي او کړاو ورته ونه رسول شي. او الله ډېر ښښونکی او زيات لورونکی دی".

---

[1]- سورة الاحزاب: ۵۹.

## په کوم کچ پرده

ښځه ټول عورت دی او ښکته پورته ټول بدن يې بايد له نامحرمو نه پټ وي، له مېړه پرته نور محرمان يې مخ، لاسونه او پښې ليدی شي او خپل مېړه يې ټوله بربنډه ليدی شي.

جنسي او شهواني زړه راښکون يواځې په عورتونو (شرمځايونو) کې نه دی، بلکه د ښځې د بدن هره برخه بيله ښکلا او بيل زړه راښکون لري. تر ټولو زيات مفاتن او ښکلا په مخ کې دي او تر ټولو زيات خوند، ښکلا او زړه راښکون په سترګو کې دی، نو ځکه ويلی شو، چې د نارينه او ښځې د بدن هره برخه يو جنسي عمل لري او يو تر بله د هر غړي له ليدلو او مښلو نه يو ډول خوند او لذت اخلي، نو ځکه اسلام دواړو ته وايي، چې نامحرمو ته مه ګورئ او سترګې ښکته کړئ او ښځو ته وايي چې په ځانونو پردې راواچوئ.

## د پردې حکمتونه

د الله سبحانه وتعالی ټول کړه او ټول حکمونه له حکمتونو څخه ډک دي او يو کار او يو حکم يې هم له حکمت نه خالي نه دی.

لکه مخکې مو چې وويل، د ښځې فطرت له کور سره جوړ دی د ښځې نازکبدني، کمزوري، ښکلا، اميدواري، د بچيوزېږول، د بچو پالل او نور ګڼ لاملونه ددې مقتضي دي، چې ښځه بايد په کور او پرده کې وي. او په سړي د ښځې او بچو د نفقې او اړتياو پوره کول، ځواکمني، د سختو کارونو او زياتو سفرونو کول او نور ګڼ لاملونه د دې غوښتونکي دي، چې سړی دې د ښځې په ډول سخته پرده نه کوي او نسبت ښځې ته دې ازاد وګرځي. ددې مطلب دا نه دی، چې په سړي د پردې هيڅ بنديز نشته، بلکه سړی به هم خپل عورت او شرمځايونه پټوي، له خپلې ښځې پرته به يې هيچاته نه ښکاره کوي او پردۍ ښځې ته به نه ګوري.

کله چې دا ثابته شوه، چې د تېري او فساد د مخنيوي لپاره دا اړينه ده، چې نارينه او ښځينه کې به يو هرومرو پرده کوي او په ګڼو دليلونو دا هم ثابته شوه، چې دا کار بايد ښځه وکړي، نو په دې کې ډېر ګڼ حکمتونه دي، چې د بېلګې او سارې په توګه يې ځينې دا دي:

۱-: اسلام د ښځې احترام کوي، پت، عزت، عفت، او عصمت يې ساتي، له تېري، ظلم او کړاوونو نه يې ژغوري او دا ټول په پردې کې خوندي کېږي.

۲-: اسلام غواړي چې انساني ټولنه د حيواناتو او ځناورو په څېر بې بريده، بې بنديزه، بې تهذيبه، بې اخلاقو، بې آدابو او وحشي نه وي او د دې ټولو لپاره د پردې بنديز يو ښه کار دی.

**۳**-: دا يو ثابت او محسوس حقيقت دى، چې كه بريدونه او بنديز نه وي، نو سړي به ښځو لپاره د داړونكيو لېوانو حيثيت ولري، هر سړى به غواړي، چې ځوانه اوښكلې پېغله له خپل تصرف لاندې را ولي او كه پرده اوبريدونه نه وي، نو دا كار به اسانه او زيات وي.

**۴**-: كه پرده نه وي، نو هر سړى به د ښكلې ښځې په تكل كې وي، بدرنګې ښځې به بې اسرې او بې مېړه پاتې وي او د ښكلو ښځو د لړوالي له امله به د ښكلو په سر لانجې او جګړې وي او ستونزې به رامنځ ته شي او دا په بې پردې ټولنو كې اوس هم محسوسه ده.

**۵**-: چې پرده نه وي، نو د بدرنګو ښځو خاوندان به ښكلو ښځو ته پسخېږي او له خپلو بدرنګو ښځونه به يې كركه كېږي. همدارنګه د بدرنګه مړونو ښځې به ښكلو سړيو ته پسخېږي او له خپلو بدرنګو مړونو نه به كركه كوي.

اودا به يوه ستونزه وي. مونږ ګورو، چې زمونږ په اسلامي ټولنو كې د پردې ښځې بې مېړه نه پاتې كېږي، ښكلې او بدرنګې ټولې ودېږي او تر اخره د نېكمرغۍ، يووالي او مينې ژوند كوي او په نامسلمانو ټولنو كې خبره مخ په ځټ ده.

**۶**-: د پردې له امله په اسلامي ټولنو كې د طلاقو نسبت ډېر لږ او د نشت سره برابر دى او په غربي او نامسلمانو ټولنو كې د طلاقو نسبت بېخي زيات دى.

زه په خپله سيمه (کوټ) او يا ټول ننګرهار کې هيڅ داسې څوک نه پېژنم، چې هغه دې ښځه طلاقه کړې وي، بلکه په هغو ډېرو شاوخوا او لرې سيمو کې هم زه داسې څوک نه پېژنم، چې هغه دې ښځه طلاقه کړې وي. په دې وروستيو کې پېښور کې يوائې د يو کس په هکله خبر شوی يم، چې هغه ښځه طلاقه کړې ده. نور به هم وي؛ د لږوالي له امله له ډېرو پنا دي.

او دا ټول د پردې برکت دی.

۷-: پرده د ښځې ښکلا زياتوي، د پردې والا ښځو په مخ کې چې کوم نور نمک او ښکلا وي، هغه د بې پردې ښځو په مخ کې بالکل نه وي.

۸-: پرده د جنسي عمل خوند او لذت، مينه او محبت زياتوي. بې پردګي او جنسي بې بندوباري د جنسي عمل ځواک کمزوری کوي. او دا له محسوساتونه ده.

۹-: پرده د ښځې او مېړه تر منځ اعتماد او باور زياتوي اود بدګمانۍ مخه نيسي.

۱۰-: پرده کورنی ژوند جوړوي، دکور ساتنه کوي او کورته پاملرنه زياتوي.

۱۱-: پرده ماشومانو ته پاملرنه زياتوي د ماشومانو پالنې، ښوونې او روزنې کې مرسته زياتوي.

۱۲-: پرده ښځه خپلو کورنيو مسؤليتونوته اوزګاروي او کور، مېړه بچو او د ښځې خپل ځان ته پاملرنه او مينه زياتوي.

**۱۳**-: پرده د ښځو روغتیا ته ګټه رسوي. له ډېرو جراثیمو، دوړو او ګردونو، خیرو او ککړتیا نه یې ژغوري. مونږ ګورو، چې سړی یو ځل ښارته لاړ شي او بیرته راځي، نو پر مخ او بدن یې ځومره ګردونه ننبتي وي؟! او دا هلته څرګندېږي، چې کله ښار ته لاړ شې او بیا کورته راشي، نو پوزه کې اوبه سوڼ کړه او ښه ټینګ استنشاق وکړه، بیا یې بیرته راسوڼ کړه او قوي استنثار وکړه، بیا وګوره چې ستا د پوزې ځومره تور ننبتي لوړي، دوړې او خیري را اوځي!؟.

له همدې امله پرده کوونکې ښځې نسبت سړیو او بې پردو ښځو ته د پوستکي، سترګو، پوزې، غوږونو، ستوني او نورې ګڼې ناروغۍ ډېرې لږې لري، چې له نشت سره برابرې دي. او دا ځکه چې د چاپېریال له ککړتیا نه خوندي وي.

**۱۴**-: پرده کوونکې ښځې د چاپېریال له هر ډول ککړتیا، پېښو، اختطاف، سپکاوي، تېري کولو، ورانکارۍ او فساد نه محفوظې دي او بې پردې ښځې دې ټولو سره مخ دي.

**۱۵**-: د پرده لرونکیو ښځو کمکي بچي هم له دغو ټولو ستونزو نه محفوظ دي.

**۱۶**-: هغه ذهني او رواني ناروغۍ، اندېښنې او غمونه، چې بې پردې ښځې یې لري؛ پرده لرونکې ښځې یې نه لري.

**۱۷**-: کوم عزت، وقار، حشمت، تحفظ، خوشحالي، نېکمرغي او سوکالي، چې پرده لرونکې ښځه لري؛ بې پردې ښځه یې نه لري.

۱۸-: کوم ننګ، غيرت، عفت، عصمت، استغناء، قناعت، تهذيب، اعتماد، ديانت، ريښتينولي او حياء، چې په پرده لرونکيو ښځو کې وي؛ په بې پردې کې نه وي.

۱۹-: د زنا د اسبابو د مخنيوي له امله پرده کوونکې ښځې د ايډز غوندې له مهلکو ناروغيو نه خوندي وي.

۲۰- : پرده دښځو پت ، عزت او وقار خوندي ساتي او د تېري او تېر ايستلو مخنيوی کوي او د دنيوي او اخروي نېکمرغيو لامل ګرځي.

۲۱-: که پرده نه وي او په هر بازار ، د کار ځای، دفترونو او نورو ځايونو کې نارينه او ښځينه ګډوډ ژوند وکړي، نواستعدادونه، خويونه او ډېرې ځانګړتياوې په توپير سره دي، ډېر نارينه به د پرديو ښځو له مشخصاتو اغېزمن کېږي او خپله ښځه به يې له پامه بدېږي او د دې کار مخنيوی يوائې په پردې کېږي همدارانګه به ښځې هم اغېزمنې کېږي او غولېږي. بې پردې او د ګډوډ کار کولو والا ښځې تل له جنسي ځورونو سره مخ وي . په دې وروستيو کې د فرانسې ښځينه وزيرانو د نارينه و له جنسي ځورونو نه شکايتونه وکړل او په رسنيو کې دا خبره خپره شوه.

## په ښځو اسانې

اسلام نسبت نارينه ؤ ته له ښځينه ؤ سره ډېره اساني کړې ده لکه:

۱: ښځو ته د حيض (مياشتينۍ وينې) او نفاس (له اولاد زېږولونه وروسته وينې) کې لمونځ معاف دی او بيا پرې هيڅ قضايي نشته او دروژې خوراک ورته معاف دی؛ خو د هغې به بيا د پاکۍ په وخت کې قضا يي راوړي.

۲: ښځې جومات ته په تللو مکلفې نه دي او که په خپله خوښه ځي، نو څوک يې منع کولی نه شي.

۳: په ښځو د سړيو غوندې جنگېدل فرض نه دي.

۴: په ښځو د هيڅا نفقه اود اړتياو پوره کول فرض نه دي.

۵: له کوره دباندې ټولې سترياوې او کار کول لکه: کرل رېبل، صنعتي او تعميراتي کارونه، د ښځو د اړتياو پوره کول او نور..... په سړيو فرض دي او په ښځو دا ټول نشته.

۶: اميد واره ښځه او تي ورکوونکې که په خپلو بچو يا صحت وېرېږي، نو روژه دې وخوري او د هرې روژې په ځای دې فديه ورکړي، چې يو مسکين ته دوه وخته ډوډۍ ورکول دي.

۷: په اسلام کې امارت او قضاء کوم امتياز نه، بلکه يو ډېرلوی مسؤليت دی او ډېر حقوق او سترياوې ورپورې تړلې دي، نو ځکه يې د ښځو په اوږو دا دروند پېټی نه دی ايښی او د خپل کور، بچو، مېړه او خپلوانو سره مينې، پاملرنې او دخپل ځان مسائلو ته اوزگاره ده، چې له يوه پلوه دا ټول ضايع نه شي او له بله پلوه د ښځو د ځانگړيو ظروفو له کبله د نورو وگړو مسائل معطل پاتې نه شي او حقوق يې ضايع نه شي.

۸- لکه چې مخکې په حديث کې تېر شول، ښځو ته درېښمو او سرو زرو استعمال روا دی او نارينه ؤ ته ناروا دی. دا هم په ښځينه ؤ اسانې ده.

۹- ښځو ته ښکلې رنګينې او هر ډول ګلدارې، زرينې او رېښمينې جامې اغوستل، د پسولونواستعمال اوسينګار کول روا دي او سړيو ته دا ټول ناروا دي، يوائې ساده جامې به اغوندي.

۱۰- په واده کې پر نفقې او نورو اړتياؤ پوره کولو سربېره په مېړه ښځې لپاره مهر فرض دی او په ښځې هيڅ ډول مالي لګښت فرض نه دی. دا څو بېلګې دي، نورې ډېرې اسانتياوې دي چې اسلام ښځو ته ورکړې دي او د اسلام کتابونه پرې ډک دي.

## واده کول

اسلام د انساني نسل د ساتلو، د کورني ژوند د جوړولو، د فطري اړتياو د پوره کولو،د نړۍ د ودانولو، د نارينه او ښځينه تر منځ دروا او فطري مينې د ساتلو اوزياتولو، د جنسي فطري غريزې د پوره کولو او د نوروګڼو ګټو د لاس ته راوړلو او دګڼو فسادونو د مخنيوي لپاره دنارينه او ښځينه تر منځ د نکاح کولو ترغيب ورکوي او د کورنيو ښو اړيکو د ساتلو حکم کوي.

په حديث کې داسې راځي:

عن عبدالله بن مسعودقال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "يا معشر الشباب من استطاع منكم الباءة فليتزوج فإنه

أغض للبصروأحصن للفرج، ومن لم يستطع فعليه بالصوم فإنه له وجاء".[۱]

له عبدالله بن مسعودرضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسو ل الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "ای د ځوانانو ډلې! په تاسو کې چې د چا د واده کولو وس وي، نو ودې يې کړي، ځکه چې واده د سترګو ښه ښکته کوونکی او د عورت ښه ساتونکی دی. او د چاچې وس نه ؤ، نو هغه دې روژې ونيسي، دا د هغه لپاره خسي کول دي".

مطلب دا ، چې د بې وسۍ په وخت کې د شهوت د کمولو او پرې د برلاسۍ لپاره روژه نيول ښه لار ده.

همدارنګه د ښځينه ؤ پلرونو او سر پرستانو ته فرمايي:

عن أبی هريرة قال: قال رسو الله صلی الله عليه وسلم : "إذا خطب إليکم من ترضون دينه وخلقه فزوجوه إن لاتفعلوه تکن فتنة فی الأرض وفساد عريض".[۲]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: " چاچې په تاسو مرکه وکړه او دهغه ديانت او اخلاق مو خوښ وو، نو واده ورکړئ؛ که دا کار ونه کړئ، نو په ځمکه کې به ګناه او پلن فساد خپور شي".

[۱]- رواه البخاری.
[۲]- رواه الترمذي.

## ليدل كتل

اسلام زلمي او پېغلې يا د واده دواړو اړخونو ته حق وركوي، چې يو بل ته وګوري او په خپله خوښه واده وكړي؛ خو داليدل به يو ځل او د سرپرستانو په مخكې وي. له دې بريده اخوا ورته نور هيڅ روانه دي.

په حديث كې داسې راځي:

عن المغيرة بن شعبة قال: خطبت إمرأة فقال لي رسول الله صلى الله عليه وسلم: "هل نظرت إليها؟" قلت: لا. قال: "فانظر إليها فإنه أحرىٰ أن يؤدم بينكما".[١]

له مغيره بن شعبه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې ما يوې ښځې باندې مركه وكړه؛ رسول الله صلى الله عليه وسلم راته وفرمايل: "آيا تا ورته وركتلي دي؟" ما ورته وويل: نه. هغه وفرمايل: "ورته وګوره، ځكه چې دا كار د دې ډېر وړ دی، چې ستاسو د دواړو تر منځ مينه پيدا شي".

## په زور نكاح نه كېږي

په اسلام كې په زور نكاح كول ناروا دي. په نكاح كې د هلک او جلۍ يا ښځې او خاوند خوښه او رضا هم ضرور ده، د

[١]- رواه الترمذی والنسائی وابن ماجة و احمد والدارمي.

سرپرستانو خوښه هم ضروري ده، ايجاب او قبول، مهر، خطبه او شاهدان ټول د نکاح له شرطونو او بنسټونو دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن ابن عباس قال: "إن جارية بكرا أتت رسول الله صلى الله عليه وسلم فذكرت أن أباها زوجها وهى كارهة فخيرها النبى صلى الله عليه وسلم".[1]

له عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي: يوه پېغله جلۍ رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغله اودا خبره يې ورته ياده کړه، چې پلار يې چاته ورکړې ده؛ خو هغه ناراضه ده. نو پېغمبر صلى الله عليه وسلم ورته (د کولو او نه کولو) اختيار ورکړ".

## نېکه ښځه

نېکه ښځه هغه ده چې د ښې عقيدې او نېک عمل څښتنه وي، لمونځ اودس او ټول عبادتونه په خپل وخت کوي، د خپل ځان، مېړه، بچو او کور د نظافت،اتفاق، نظم او نسق خيال ساتي، دخوښې،خوسر او نورو خپلوانو خيال ساتي، د کور او مېړه رازونه ساتي،له مېړه بې ځايه غوښتنې او له نورو ښځو سره په جاموا‌و نورو کې سيالي نه کوي، له مېړه سره په هر حالت کې وفاداره وي،

[1]- رواه البخاري ومسلم و ابوداود وابن ماجه والنسا ئى والدارقطنى والبيهقى.

پرده داره، حياناکه،پتمنه او پاکلمنې وي او په دې ټولو سربېره د خپل مېړه منونکې وي. په حديث کې د نېکې ښځې ځينې ښه خويونه داسې ياد شوي دي:

عن أنس قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "المرأة إذاصلت خمسها وصامت شهرها وأحصنت فرجها وأطاعت بعلها فلتدخل من أى أبواب الجنة شاءت".[1]

له انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "ښځه چې کله خپل پنځه وخته لمونځ وکړي، درمضان د مياشتې روژه ونيسي، خپل عورت وساتي، او دخپل مېړه ومني، نو دجنت له هرې دروازې يې چې خوښه وي؛ ورننه دې وځي".

په بل حديث کې د منونکې ښځې په هکله داسې راځي:

عن أم سلمة قالت : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "أيما إمرأة ماتت وزوجها عنها راض دخلت الجنة".[2]

له أم سلمه رضي الله عنها نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "هره ښځه چې ومري او مېړه ترې راضي وي، نو جنت ته ننوته".

د نېکې ښځې په هکله بل حديث داسې راغلی دی:

عن عبدالله بن عمرو قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "الدنيا كلها متاع وخير متاع الدنيا المرأة الصالحة".[3]

---

[1]- رواه احمد وابن حبان والطبراني والبزار والديلمي.
[2]- رواه الترمذى وابن ماجة والحاكم والطبراني وابن أبي شيبة والبيهقى في شعب الإيمان.
[3]- رواه مسلم.

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: "دنيا ټوله ګټه ده او د دنيا غوره ګټه نېکه ښځه ده".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبي أمامة عن النبى صلى الله عليه وسلم أنه يقول: "مااستفادالمؤمن بعد تقوى الله خيرا له من زوجة صالحة إن أمرها أطاعته وإن نظر إليها سرته و إن أقسم عليها أبرته و إن غاب عنها نصحته فى نفسها وماله".[۱]

له ابوامامه رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پېغمبر صلی الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې فرمايي: " د الله تعالی له وېرې وروسته مؤمن له بل شي داسې ګټه نه ده اخيستې، چې ورته غوره وي، لکه له داسې نېکې ښځې يې چې اخيستې، چې امر ورته وکړي، نو ويې مني، که ورته وګوري، نو خوشحاله يې کړي، که قسم واخلي؛ د قسم د ماتولو له ګناه يې وساتي او که ترې غائب شي، په خپل ځان او د خاوند په مال کې يې خير غواړي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن عائشة قالت: قال النبى صلى الله عليه وسلم: "إن أعظم النكاح بركة أيسره مؤنة".[۲]

---

[۱]- رواه اپن ماجه.
[۲]- رواه البيهقى فى شعب الإيمان.

له عائشې رضی الله عنها نه روایت دی هغه وایي، چې پېغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "ډېر برکتناک واده هغه دی، چې سرشته یې ډېره اسانه وي".

اسلام غواړي، چې ودونه اسان وي، تر څو ټول ځوانان او پېغلې او ناواده په واده شي او ژوند یې جوړ او منظم شي.

## د ښځې او مېړه یو تر بله رازونه ساتل

اسلام ښځې او خاوند دواړو ته توصیه کوي، چې له مینې او محبت نه ډک او دپېرزوینې، لورېنې او خواخوږۍ ژوند سره وکړي او دواړه یو د بل راز وساتي، دخپل ځانګړي ژوند پټ رازونه چاته ښکاره نه کړي او د اعتماد او باور په فضا کې سره و اوسېږي.

په حدیث کې داسې راځي:

عن أبي سعيد قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " إن أعظم الأمانة عندالله يوم القيامة و فى رواية: إن من أشرالناس عندالله منزلة يوم القيامة: الرجل يفضى إلى إمرأته وتفضى إليه ثم ينشر سرها".[1]

له ابو سعید رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د قیامت په ورځ له الله سره لوی امانت، او په یو روایت کې راځي، چې د قیامت په ورځ له

---

[1]- رواه مسلم.

الله تعالی سره په ټولو خلکو کې په مرتبه کې ډېر ناوړه او بد هغه سړی دی، چې له خپلې ښځې سره يو ځای کېږي او هغه له ده سره يو ځای کېږي او بيا يې پټ راز ښکاره کوي".

## د ښځو ترمنځ عدل

لکه مخکې مو چې وويل د دوه، درې يا څلورو پورې ښځې کول يو فطري اړتيا ده او چې څوک عدل نه شي کولی، نو له يوې ښځې زياتې ورته روا نه دي؛ څوکه څوک له يوې زياتې ښځې ولري، نو د هغوی تر منځ به بشپړ عدل او انصاف کوي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة عن النبی صلی الله عليه وسلم قال: "إذا كانت عندالرجل إمراتان فلم يعدل بينهما جاء يوم القيامة وشقه ساقط".[1]

له ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پېغمبر صلی الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې هغه وفرمايل: "کله چې له يو سړي سره دوه ښځې وي او د دواړو تر منځ يې عدل ونه کړ، نو د قيامت په ورځ به په داسې حال کې راشي، چې يو اړخ به يې ګوزن وهلی وي".

[1]- رواه الترمذی و أبوداود والنسائی وابن ماجه والدارمي.

## سخت وهل منع دي

د ښځې د نشوز او سرغړونې په وخت کې د ښځې سپک وهل روا دي؛ خو بې ځایه په معمولي او ناڅیزه خبرو د ښځو وهل ناروا دي. همدارنګه سخت وهل یې هم ناروا دي.

په حدیث کې داسې راځي:

عن عبدالله بن زمعة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لايجلد أحدكم إمرأته جلدالعبد ثم يجامعها فى آخراليوم". ۱

له عبدالله بن زمعه رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل: "ستاسو هیڅوک دې خپله ښځه د مریي په څېر نه وهي، چې بیا د ورځې په آخر کې ورسره کور والی هم کوي".

د مریي له وهلونه مراد هغه وهل دي، چې له اسلام نه مخکې دجاهلیت په وخت کې خلکو وهل؛ په اسلام کې د مریي او وینځې وهل هم منع دي لکه چې وروسته به راشي. ۲

## له خپلې ښځې سره ښه سلوک

اسلام مېړه ته حکم کوي، چې له خپلې ښځې سره ښه سلوک وکړي او د مینې محبت او همکارۍ ژوند سره وکړي.

۱- رواه البخارى ومسلم.
۲- (۲۹۱) مخ وګورئ.

په حديث کې داسې راځي:

عن عائشة قالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "خيركم خيركم لأهله و أنا خير كم لأهلي". ۱

له عائشې رضی الله عنها نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "ستاسو غوره هغه څوک دی، چې د خپلې ښځې لپاره ښه وي او زه د خپلو ښځو لپاره ښه يم".

د رسول الله صلى الله عليه وسلم له ښه سلوک نه دا لاندې کيسه هم ده :

عن عائشة أنها كانت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فى سفر قالت: فسابقته فسبقته على رجلى فلما حملت اللحم سابقته فسبقنى قال: "هذه بتلك السبقة". ۲

له عائشې رضی الله عنها نه روايت دی، چې هغه له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په يو سفر کې وه؛ هغه وايي: ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د منډې وهلو مسابقه وکړه، نو زه ورڅخه د پښو په منډه مخکې شوم؛ کله چې څربه شوم، نو بيا مې چې ورسره مسابقه وکړه؛ هغه له ما مخکې شو، نو ويې فرمايل: "دا هغه مخکې مسابقې کې ستا د مخکې کېدو په بدل کې شو".

په بل حديث کې داسې راځي:

---

[1]- رواه الترمذى وابن ماجه والدارمي.

[2]- رواه ابوداود.

عن عائشة قالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "إن من أكمل المؤمنين إيمانا أحسنهم خلقا و خياركم لنسائهم".١

له عائشي رضی الله عنها نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "په مؤمنانو کې د ډېر بشپړ ايمان خاوند هغه څوک دی، چې تر ټولو ښه اخلاق ولري او په تاسو کې غوره خلک هغه څوک دي، چې د خپلو ښځو لپاره ښه وي".

رسول الله صلى الله عليه وسلم له خپلو ښځو سره ډېر ښه سلوک کاوه او له ښو اخلاقو څخه يې کار اخيسته.

په حديث کې داسې راځي:

عن عائشة قالت: "كنت ألعب بالبنات عندالنبى صلى الله عليه وسلم وكان لي صواحب يلعبن معي فكان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا دخل ينقمعن منه فيسربهن إلى فيلعبن معي".٢

له عائشي رضی الله عنها نه روايت دی هغه وايي: مابه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مخکې په نانځکولو بې کولې او زما څو ملګرې وې، چې له ماسره به يې لوبې کولې، رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې کله را ننواته؛ هغوی به ترې پټېدې، نو هغه به ماته راپرېښودې او له ماسره به يې لوبې کولې".

په بل حديث کې داسې راځي:

---

[1] ـ رواه الترمذی و ابوداود.

[2] ـ روا البخاری ومسلم.

عن عائشة قالت: والله لقد رأيت النبى صلى الله عليه وسلم يقوم على باب حجرتي والحبشة يلعبون بالحراب فى المسجد و رسول الله صلى الله عليه وسلم يسترني بردائه لأنظر إلى لعبهم بين أذنه وعاتقه ثم يقوم من أجلي حتى أ كون أنا التى أنصرف فاقدروا قدرالجارية حديثة السن الحريصة على اللهو". ۱

له عايشې رضى الله عنها نه روايت دى، هغه وايي: په الله قسم دى؛ مارسول الله صلى الله عليه وسلم ليدلى ؤ، چې زما د كور په دروازه كې ولاړ ؤ، حبشيانو په جومات كې په نېزو لوبې كولې او رسول الله صلى الله عليه وسلم زه په خپل څادر كې پټولم، چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اوږې او غوږ له منځه د هغوى لوبوته وګورم؛ بيا به زما له كبله تر هغه ودرېده، چې زه پخپله لاړه شم. تاسو خپله د ځوانې جلۍ اندازه ولګوئ، چې په لوبو باندې څومره حرصناكه وي؟!. په يو روايت كې راځي، چې (حبشيانو اتڼ كاوه).

له خپلو ښځو سره د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ښه سلوک ډېرې كيسې دي، چې د احاديثو په كتابونو كې په صحيحو اسانيدو ثابتې دي، د هغه له ښو اخلاقو نه يو كيسه دا هم ده:

عن عائشة قالت: قدم رسول الله صلى الله عليه وسلم من غزوة تبوك أو حنين وفي سهوتها ستر فهبت ريح فكشفت ناحية الستر عن بنات لعائشة لعب؛ فقال: "ما هذا ياعائشة؟" قالت: بناتى. ورأى بينهن فرسا له جناحان من رقاع، فقال: "ماهذا الذى

---

[1]- رواه البخارى ومسلم.

أرىٰ وسطهن؟" قالت: فرس. قال: "وما هذا الذى عليه؟" قالت: جناحان. قال: "فرس له جناحان؟!" قالت: أماسمعت أن لسليمان خيلا لها أجنحة؟. قالت: فضحك حتى رأيت نواجذه.[1]

له عائشې رضى الله عنها نه روايت دی هغه وايي: رسـول الله صلى الله عليه وسلم د تبوک يا حنين له غزوې راستون شو د عائشې رضى الله عنها په چاختې پرده وه، هوا راوالوته او دچـاختې پرده يې پورته کړه، نو دعـائـشې رضى الله عنها د لوبو نانځکې يې راښکاره کړې. رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "ای عائشې! دا څه شی دی؟" هغې وويل : دا زما نانځکې دي. هغه د نانځکو په منځ کې يو آس وليد ، چې د ټوټو وزرونه يې وو، نو ويې فرمايل: "دا په منځ کې يې چې ګورم دا څه شی دی؟" هغې وويل: آس دی. هغه وفرمايل: " او دا له پاسه پرې څه شی دی؟" هغې وويل: وزرونه يې دي. هغه وفرمايل: "آس دی او وزرونه يې دي؟!" هغې وويل: آيا تا نه دي اورېدلي، چې د سليمان عليه السلام داسې آسونه وو،چې وزرونه يې وو؟ نو هغه صلى الله عليه وسلم داسې وخندل، چې د ژامنې غاښونه يې څرګند شول.

پـه بـل حـديث کـې د حقوقـو او ښـه سـلوک پـه هکلـه داسـې راغـي :

عن حكيم بن معاوية القشيري عن أبيه قال: قلت: يا رسول الله! ما حق زوجة أحدنا عليه؟ قال: " أن تطعمها إذا طعمت

[1]- رواه ابوداود.

وتكسوها إذا اكتسيت ولا تضرب الوجه ولا تقبح ولا تهجر إلا فى البيت ".۱

حکيم بن معاويه قشيري له خپل پلار نه روايت کوي هغه وايي: ما وويل: ای د الله پيغمبره! زمونږ په هر يو کس د خپلې ښځې کوم حق دی؟ هغه وفرمايل: "کله چې تا څه خوړل، نو هغې ته يې هم ورکړه، چې جامې دې اغوستې؛ هغې ته يې هم واخله، په مخ يې مه وهه، سپکې سپورې ورته مه وايه او که جلا کېدو ته اړتياوه، نو يوائې په کور کې ترې جلا( مرور) شه".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن إياس بن عبدالله قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " لاتضربوا إماءالله " فجاء عمر إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: ذئرن النساء على أزواجهن فرخص فى ضربهن فطاف بآل رسول الله صلى الله عليه وسلم نساء كثير يشكون أزواجهن فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لقد طاف بآل محمد نساء كثير يشكون أزواجهن ليس أولئك بخياركم".۲

له اياس بن عبدالله نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " تاسو د الله بندګاني (ښځې) مه وهئ" عمر رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغی او ويې ويل: ښځې دمړونو په سرونو وختې او ډېرې پرې زړورې شوې، نو بيا يې د وهلو اجازه ورکړه. بيا د رسول الله صلى الله عليه

[1]- رواه ابوداود وابن ماجة و احمد.
[2]- رواه ابوداود وابن ماجة والدارمي.

وسلم ښځو ته ډېرې ښځې راغلې، چې له خپلو مړونو نه يې شکايت کاوه؛ رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "د محمد کورته ډېرې ښځې راغلې، چې له خپلو مړونونه يې شکايت کاوه دغه سړي په تاسو کې ښه خلک نه دي".

شيطان کوښښ کوي، چې د ښځې او مېړه تر منځ اختلاف پيدا کړي.

په حديث کې داسې راځي:

عن جابر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " إن إبليس يضع عرشه على الماء ثم يبعث سراياه يفتنون الناس فأدناهم منه منزلة أعظمهم فتنة فيجئ أحدهم فيقول: فعلت كذا وكذا فيقول: ما صنعت شيئا ؛ قال: ثم يجئ أحدهم فيقول: ما تركته حتى فرقت بينه و بين إمرأته. قال: فيدنيه منه و يقول : نعم أنت. قال: فيلتزمه".[۱]

له جابر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " إبليس خپل تخت په اوبو ږدي؛ بيا خپلې ډلې لېږي، چې خلک په فسادونو کې اخته کړي. هغه ته په مرتبه کې ډېر نږدې هغه څوک وي، چې په لوی فساد کې يې خلک اخته کړي وي. يو کس يې راشي او ورته وايي: ماداسې داسې وکړل. هغه ورته وايي: هيڅ دې نه دي کړي. بيا ورته يو کس راشي او ورته وايي، چې تر هغې مې نه پرېښوده تر څو مې چې هغه او د

[۱]- رواه مسلم.

هغه ښځه سره جلاکړل. هغه ځان ته رانږدې کړي او ورته وايي چې: هو همداته د کار سړی يې نو ورغاړې وځي".

له ښځو سره د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ښه سلوک يوه بېلگه دا لاندې حديث هم دی، چې څرنگه رسول الله صلی الله عليه وسلم عائشه رضی الله عنها له خپل پلار أبوبکر رضي الله عنه نه وژغورله او بيا يې ورسره ټوکه هم وکړه.

عن النعمان بن بشير قال: إستاذن أبوبكر على النبى صلى الله عليه وسلم فسمع صوت عائشة عاليا فلما دخل تناولها ليلطمها وقال: لاأراك ترفعين صوتك على رسول الله صلى الله عليه وسلم فجعل النبى صلى الله عليه وسلم يحجزه وخرج أبوبكر مغضبا. فقال النبى صلى الله عليه وسلم حين خرج أبوبكر: "كيف رأيتنى أنقذتك من الرجل؟" قالت: فمكث أبوبكر أياما ثم استاذن فوجدهما قداصطلحا، فقال لهما: أدخلاني فى سلمكما كما أدخلتمانى فى حربكما. فقال النبى صلى الله عليه وسلم : "قد فعلنا قد فعلنا".[1]

له نعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: ابوبکر رضي الله عنه رسول الله صلی الله عليه وسلم کره د ورننوتلو اجازه وغوښته او د ورننوتو په وخت کې يې د عائشې رضی الله عنها لوړ غږ واورېد، کله چې ورننه واته، نو غوښتل يې چې يوه څپېړه يې ووهي او ورته ويې ويل: زه دې تا په داسې حال کې ونه گورم. چې پر رسول الله صلی الله عليه وسلم خپل غږ لوړ وي.

---

[1]- رواه ابوداود.

پېغمبر صلى الله عليه وسلم هغه لـه وهلو منعه کاوه. او ابوبکر رضي الله عنـه پـه غوسـه وواتـه. ابـوبکر چـې کلـه وواتـه، نـو نبـی کـریم صـلی الله علیـه وسـلم عـائشـې رضـی الله عنهـا تـه وفرمایـل: "څرنګه؟ ودې لیدم، چې له دغه سړي نه مې خلاصه کړې؟ " عـائشـه رضـی الله عنهـا وایـي: ابـوبکر څـو ورځـې ځنډ وکـړ؛ بیـا راغـی او اجازه یې وغوښـته، چـې ويـې لیـدل؛ دواړو سره جوړه کـړې وه، نـو ابوبکر رضي الله عنه دواړو ته وویل: لکه چې تاسو زه په جنګ کې ځای کړی وم؛ ستاسو په سولې کې مې هم درننه باسئ. نبی کـریم صـلی الله علیـه وسـلم ورتـه وفرمایـل: "دا کـار مـو وکـړ، دا کـار مـو وکړ".

## لوڼو سره ښېګړه

لوڼو سره د ښېګړې په هکله خاص پاملرنه راغلې ده.

په حدیث کې لوڼو سره د ښېګړې په هکله داسې راغلي دي:

عن عائشة قالت: قال النبی صلی الله علیه وسلم : "من ابتلی من هذه البنات بشئ فأحسن إليهن کن له سترا من النار".[۱]

له عائشی رضی الله عنها نه روایت دی هغه وايي، چې پېـــغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: "څوک چې د دې لوڼو

---

[۱]- رواه البخاری ومسلم.

په هکله په څه شي وازمېیل شو او له هغوی سره یې ښېګړه وکړه، نو دا به ورته له اور نه پرده شي".
په بل حدیث کې داسې راځي:
عن أنس قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "من عال جاريتين حتى تبلغا جاء يوم القيامة أنا وهو هكذا و ضم أصابعه". ۱
له انس رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: "چا چې بلوغ پورې د دوه جنکو سر پرستي وکړه، نو د قیامت په ورځ به راشي او زه او هغه به سره داسې یوو: ګوتې یې سره جوختې کړې".
په بل حدیث کې له کونډې سره د ښېګړې په هکله داسې راځي:
عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "الساعى على الأرملة والمسكين كالساعى فى سبيل الله" وأحسبه قال: "كالقائم لايفتر و كالصائم لايفطر". ۲
له ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "له کونډې او یتیم سره د ښېګړې کوښښ کوونکی د الله د لارې په جهاد کې د کوښښ کوونکي مجاهد غوندې دی" او ګمان کوم، چې داسې یې هم وویل: " داسې دی لکه د شپې په تهجدو چې ولاړ وي او پکې نه

[1]- رواه مسلم.
[2]- رواه البخارى ومسلم.

سستېږي. او د هغه روژه دار غوندې دی، چې روژه نه ماتوي او تل روژې نيسي".

همدارنګه له خپلې کونډې شوې لور سره ښېګړه کول او دهغې پالل ډېرثواب او فضيلت لري. په يوحديث کې داسې راغي:

عن سراقة بن مالك أن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "ألا أدلكم على أفضل الصدقه؟ إبنتك مردودة إليك ليس لها كاسب غيرك".[۱]

له سراقه بن مالك رضي الله عنه نه روايت دی، چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "آيا زه تاسو ته تر ټولو ښه خيرات کول در په ګوته کړم؟ ستا په هغې لور خيرات کول دي، چې طلاقه شوې وي، يايې مېړه مړ شوی وي ، تاته بيرته راغلې وي او له تاپرته يې بل څوک د ګټې وټې نه وي".

يعنې دا تر ټولو ښه صدقه ده، چې د چالور يا کونډه شي او يامېړه طلاق ورکړي او د پلار کورته راشي، نه يې زوی وي او نه بل د ګټې وټې سرپرست، نو په دې لور انفاق کول او د دې پالل تر ټولو زيات ثواب او تر ټولو ښه خيرات دی.

[۱]- رواه ابن ماجه.

## نېکه کونډه

د خپلو بچو پالونکې کونډې په هکله داسې حديث راغلی دی:

عن عوف بن مالك الأشجعی قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " أنا وامرأة سفعاء الخدين كهاتين يوم القيامة و أومأ يزيد بن زريع إلى الوسطى والسبابة إمرأة أمت من زوجها ذات منصب وجمال حبست نفسها على يتاماها حتى بانوا أوماتوا".[1]

له عوف بن مالک اشجعي رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " زه او له غمه دتورو شويو اننګو والا کونډه ښځه به د قيامت په ورځ داسې سره يو ځای يوو؛ راوي يزيد بن زريع منځۍ او مسواکۍ ګوتې ته اشاره وکړه، دا داسې ښځه ده چې له خاوند نه کونډه شوې وي، د شهرت او ښايست والاوي او خپل ځان يې خپلو يتيمانو ته تر هغې وقف کړی وي، چې يا ترې جلا او يا مړه شي".

په بل حديث کې د لور په هکله داسې راغلي دي:

عن ابن عباس قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "من كانت له أنثى فلم يأدها ولم يهنها ولم يؤثر ولده عليها أدخله الله الجنة".[2]

---

[1] - رواه ابوداود.
[2] - رواه ابوداود.

له عبد الله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " دچاچې لور وي او نه يې ژوندی ښخه کړه، نه يې سپکه وګڼله او نه يې زوی پرې غوره وګاڼه، نو الله به يې جنت ته ننباسي". له دې حديث نه په ډاګه دا ثرګندېږي، چې زوی به په لور غوره نه ګڼل کېږي او له دواړو سره به يو ډول ښه سلوک او ښېګړه کېږي.

## له خپل وس سره سم دين

د اسلام بل حسن او د انساني ټولنې سره ښېګړه دا ده، چې په انسان داسې دروند بار نه ږدي، چې يايې نه شي وړی او يا ډېر زور او کړاو ورکوي؛ بلکه اسلام د فطرت دين دی او د انسان ټولو ظروفو او شرائطو ته پاملرنه کوي.

الله تعالی فرمايي:

"لَا يُكَلِّفُ اللهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا". ۱

"الله هيڅوک له خپل وس څخه زيات نه مجبوروي".

او فرمايي:

"فَاتَّقُوا اللهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ". ۲

" څومره مو چې وس وي؛له الله نه ځانونه وژغورئ".

او فرمايي:

[1]- سورة البقرة: ٢٨٦.

[2]- سورة التغابن: ١٦.

"وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ". ۱
" او په تاسو يې په دين کې کومه تنګي او کړاو نه دی ايښی".
او فرمايي:
"مَا يُرِيدُ اللهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ". ۲
" الله نه غواړي چې په تاسو کوم کړاو کېدي".
او فرمايي:
"يُرِيدُ اللهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلاَ يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ". ۳
"الله په تاسو اساني غواړي او سختي درباندې نه غواړي".
نو اسلام سرتر پايه خپل منونکي په داسې احکامو مکلفوي، چې له وسه يې پوره وي. ستونزمن، کړکېچن او له وسه دباندې احکام پرې نه ږدي.
د ساري په توګه ځو بېلګې دا دي:
۱- اسلام د لمانځه کولو حکم کوي؛ خو که څوک مسافر وي، نو څلور رکعتي فرض لمونځ پرې دوه رکعته فرض شي او دايوه اساني ده.

۲- که څوک اوبه ونه مومي، يا ورته ښې نه وي، نو د اودس په ځای دې تيمم ووهي.

[1]- سورة الحج: ۷۸.
[2]- سورة المائده:٦.
[3]- سورة البقرة: ۱۸۵.

۳- که څوک په ولاړه لمونځ نه شي کولی؛ په ناسته دې وکړي او که په ناسته يې نه شي کولی په ملاسته او اشاره دې وکړي.

۴- که په سفر کې وي، يا باران وي، يا بل کوم ضرورت وي، نو د (جمع بين الصلاتين) په حکم دې د ماسپښين او مازيګر لمونځونه يو ځای وکړي او د ماښام او ماسختن دې يو ځای وکړي.

۵- که څوک مسافر يا ناروغ وي، نو روژه دې وخوري او بيا دې داقامت او روغتيا په وخت کې قضايي راوړي.

۶- که د چا وس نه وي؛ زکات ورکول پرې نشته.

۷- که د چا وس نه وي؛ حج کول پرې نشته.

۸- په صغير او صغيرې روژه فرض نه ده.

۹- که شيخ فاني (ډېر بوډا او بوډۍ) روژه نه شي نيولی، نو د هرې روژې په بدل کې به يو بې وزلي ته د دوه وخته ډوډۍ په ورکولو فديه ورکړي.

## د پاکۍ دين

اسلام پاک دين دی، له پاکۍ، نظافت او طهارت څخه ډک دی، په پاکۍ امر کوي، هم د انسان ظاهري پاکۍ ته پاملرنه کوي او هم يې باطني او معنوی پاکۍ ته هڅوي، هم يې ګروهه، اند او ذهن رڼوي او پاکوي او هم يې بدن، جامه، خوراک څښاک، ځای او چاپېريال پاکوي؛ هم يې اخلاق او خويونه پاکوي او هم يې ټولنه او نړۍ. د معنوي اوباطني تزکيي او پاکۍ په هکله فرمايي:

"قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّى وَذَكَرَ اسْمَ رَبِه فَصَلَّى".[۱]
"هغه څوک بې شکه بريالى شو، چې ځان يې پاک کړ، د خپل رب نوم يې يادکړ اولمونځ يې وکړ".
او فرمايي:
"قَدْ أَفْلَحَ مَن زَكَّاهَا".[۲]
" چا چې خپل نفس پاک کړ، نو بې شکه بريالى شو".
اسلام دانسان ګروهه (عقيده) له هر ډول کفر، شرک، نفاق، او هر ډول باطني او معنوي ناپاکيو او ککړتياؤ نه پاکوي او په پاکه، سوچه، نږه، رڼه او سپينه ګروهه يې ګروهمن کوي.
همدارنګه اسلام په اخلاقي پاکۍ امر کوي غلا، زنا ، بچه بازي، دروغ، غيبت، چغلي او هر ډول فساد، ورانکاري او بدکاري منع کوي.
اسلام په بدني پاکۍ امر کوي؛ مسلمانان پنځه وخته په دې مکلفوي چې لمونځونو ته اودسونه وکړي، دغتېو او وړو ميتيازو نه په استنجا کولو او مينځلو امر کوي، له دې دواړو او بادو له وتو نه په اودس کولو حکم کوي، چې د شرمځايونو مينځل، د خولې مينځل، په پوزه کې ښه پورته اوبه سوښول او بيا بيرته ښکته راسوښول، د مخ مينځل، تر څنګلو پورې د لاسونو مينځل، د سرمسحه، او د پښو مينځل پکې شامل دي.

---
[۱]- سورة الاعلى: ١٤- ١٥.
[۲]- سورة الشمس: ٩.

همدارنګه يې نور هم مهذبوي ، پاکوي ا و د دې لپاره، چې هسې بې ځايه شرمځای ته لاس وروړلو باندې عادت نه شي او په تولنه کې بې ادب، غير مهذب او ناوړه ونه برېښي؛ ذکر يا فرج ته په بې پردې لاس وروړلو هم د اودس کولو امر کوي، همدارنګه د اوښ له غوښې خوړلو نه وروسته د سوړ بوی د له منځه وړلو لپاره د اوښ د غوښې له خوراک نه هم په اودس کولو امر کوي. له مذي او ودي نه هم په اودس امر کوي. له جنابت (په ويښه يا ويدو د کوروالي يا مني له وتو) نه په غسل کولو حکم کوي، چې له اودس کولو او پوره لمبلونه عبارت دی.

همدارنګه لږ تر لږه اونۍ (هفتې) کې يوځل غسل کول اړين بولي، د جمعې په ورځ لمبل اړين بولي، د حيض او نفاس د وينې له پاکېدونه وروسته په ښځو غسل لازم بولي، احرام تړلو او د اختر په ورځ غسل ښه بولي او تل په پاکۍ او نظافت امر کوي.

همدارنګه د هرې ورځې پنځه وخته اودس او د لمانځه په وخت کې په مسواک دغاښونو پاکولو ته مسلمانان هڅوي او دځان، جامو او ځای پاکوالی اړين بولي.

کورته د ننوتو په وخت کې او د شپې دراپاځېدو او نورو وختونو کې مسواک وهل ښه بولي، د نوکانو او زياتي وېښتانو لرې کول او غوڅول اړين بولي؛ د عطرو استعمال او خوشبويي ته پاملرنه کوي.

جامې بدن او ځای له غټو او وړو ميتازو او نورو ناپاکيو نه په ساتلو حکم کوي؛ تر دې چې د وړو ميتيازو له څاڅکو نه هم په

ځان ساتلو حکم کوي. دا ټول په دې دلالت کوي، چې اسلام د بدن، جامې او ځای پاکوالي ته زياته پاملرنه کوي.

او الله تعالی فرمايي:

"إِنَّ اللّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ". ۱

"الله بې شکه توبه کوونکي او ځان پاکوونکي خوښوي".

همدارنګه اسلام د خوراک او څښاک په پاکۍ حکم کوي. هم معنوي ناپاکه خواړه منع کوي او له حرامو خوړلو نه په ځان ژغورلو حکم کوي او هم ظاهري ناپاک شيان حراموي.

الله تعالی فرمايي:

" قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ......". ۲

"ورته ووايه، چې تاسو لپاره پاک شيان حلال شوي دي".

او فرمايي:

"فكلوا مِمَّا رَزَقَكُمُ الله حَلالاً طَيِّبًا......". ۳

" تاسو ته چې الله څه درکړي دي؛ له هغو څخه پاک حلال خورئ".

او فرمايي:

"كُلُواْ مِن طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ.......". ۴

" له هغو پاکونه و خورئ، چې مونږ درکړي دي".

او فرمايي:

---

[1] - سورة البقرة: ۲۲۲.
[2] - سورة المائدة: ٤.
[3] - سورة النحل: ۱۱٤.
[4] - سورة البقرة: ۱۷۲.

"الْيَوْمَ أُحِلّ لَكُمُ الطّيِّبَاتُ..........".١

"نن تاسو لپاره پاک شيان حلال شوي دي".

او فرمايي:

"يَا أَيُّهَا النّاسُ كُلُواْ مِمّا فِي الأَرْضِ حَلاَلاً طَيِّبا.....".٢

"اى خلكو! په ځمكه كې چې څه دي، له هغو حلال او پاک وخورئ".

او فرمايي:

"وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلّ شَيْءٍ فَسَأَكْتُبُها للّذينَ يَتّقُونَ وَيُؤْتُونَ الزّكَاةَ وَالّذينَ هُم بِآيَاتِنَا يُؤْمِنُونَ الّذِينَ يَتّبِعُونَ الرّسُولَ النّبِيّ الأُمّيّ الّذي يَجِدُونه مَكْتُوبًا عِندَهُمْ فِي التّوْرَاة وَالإِنْجِيلِ يَأْمُرُهُم بِالْمَعْرُوفِ وَيَنهاهُمْ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُحَلُّ لهمُ الطّيِّبَاتِ وَيُحَرّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَآئثَ وَيَضَعُ عَنهمْ إِصْرَهُمْ وَالأَغْلاَلَ الّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ فَالّذينَ آمَنُواْ به وَعَزّرُوهُ وَنَصَرُوهُ وَاتّبَعُواْ النُّورَ الّذِيَ أُنزِلَ مَعَهُ أُوْلَـئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ".٣

" زما رحمت هر شي ته پراخه دى؛ زه به يې د هغه چالپاره وټاکم، چې ځانونه له بديو ژغوري، زكات وركوي او د هغو خلكو لپاره، چې زمونږ په آياتونو ايمان راوړي، هغه خلک چې د هغه نالوستي استازي او پېغمبر تابعداري كوي، چې هغوى يې له خپلو ځانونو سره په تورات او انجيل كې ليكلى مومي، چې هغوى ته په نېكيو امر كوي، له بديو يې منع كوي ، پاک شيان ورته حلالوي،

[1]- سورة المائدة: ٥.
[2]- سورة البقرة: ١٦٨.
[3]- سورة الاعراف: ١٥٦- ١٥٧.

ناپاکه پرې حراموي او له هغوی څخه هغه درانده بارونه او غړوندي لرې کوي، چې پرې تاکل شوي وو، نو هغه خلک چې ايمان يې پرې راوړ، د هغه ملا تړ يې وکړ، مرسته يې ورسره وکړه او د هغې رڼا پسې لاړل، چې له هغه سره نازله شوې ده؛ همدوی بريالي دي".

اسلام ټول پاک شيان حلال کړي دي او ناپاک يې حرام ګڼلي دي او اسلام چې کوم شيان ناپاک او حرام ګڼلي دي؛ په هغو کې د بشري ټولنې لپاره زيان او تاوان دی.

همدارنګه په اسلام کې د بهېدونکې وينې خوړل يا د مردارې خوړل حرام دي، د خره، خنزير، (بدځناور) سپي، څيروونکيو ځناورو او څيروونکيو مرغانو غوښې حرامې دي.

همدارنګه د هغو څارويو غوښې او شېدې او د هغو چرګانو غوښې او هګۍ خوړل حرام دي، چې د انسان يا نورو ځناورو ګندګي اونور ناولي شيان خوري؛ د پاکولو لپاره به لږ تر لږه درې ورځې تړل کېږي او پاک خواړه به ورکول کېږي، تر څو يې وينه پاکه شي او د ګندګۍ بوي او اثر يې له غوښې ورک شي.

همدارنګه اسلام تل دلوښو په پاکولو او پټولو امر کوي او په ځانګړې توګه د شپې د ډکو او تشو ټولو لوښو په پټولو ډېر ټينګار کوي.

همدارنګه په لوښي کې له سا اخيستلو او پوکي نه اسلام منع کوي. د شرابو او ټولو نشه راوړونکيو شيانو له استعمال نه اسلام په کلکه منع کوي.

اسلام په سيوري، لارو، ښکاره ځايونو او د خلکو د ناستې پاستې او تګ راتګ په ځايونو کې د انساني حاجت (غټو او وړو ميتيازو) کولو نه منع کوي.

دا او داسې نور ګڼ احکام او آداب په دې ځرګند دلالت کوي، چې اسلام پاکوالي او نظافت ته زياته پاملرنه کوي او اهميت ورکوي.

دا ټول د اسلام هغه ښېګړې او محاسن دي، چې انساني ټولنه ورته هڅوي او ټينګار پرې کوي. که د اسلام د پاکۍ احکام پلي شي؛ د چاپېريال د ككړتيا مخنيوى به وشي او ډېرې هغه ستونزې به له منځه لاړې شي، چې نړۍ ورسره مخ ده.

## د فطري پاکۍ پنځه امور

اسلام تل د پاکۍ په ټولو ډولونو حكم کوي او مخكې يې څه ډولونه تېر شول؛ خو دلته هغه پنځه امور او پنځه کارونه يادېږي، چې د ټولو پېغمبرانو او اكثرو انسانانو فطري خويونه دي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "الفطرة خمس: الختان والإستحداد وقص الشارب وتقليم الأظفار ونتف الإبط".[1]

---

[1]- رواه البخارى ومسلم.

له ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی، هغه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "د فطرت پنځه کارونه دي: زياتي ( د عورت په شاوخواکې) وېښتان خرېيل، د برېتونو لنډول، د نوکانو غوڅول او د تخرګونو د وېښتانو ايستل".

د فطرت د دې پنځو کارونو لپاره تر ټولو د کم وخت تحديد نشته؛ خو تر ټولو زيات يې څلوېښت شوارورزه دي، له دې نه زيات به نه پرېښودل کېږي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أنس قال: "وقت لنا فى قص الشارب و تقليم الأظفار و نتف الإبط و حلق العانة أن لا نترك أكثر من أربعين ليلة". [1]

له انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: "مونږ ته د برېتونو په لنډولو، د نوکانو غوڅولو، د تخرګونو د وېښتو ايستلو اود نامه لاندې وېښتو د خرېيلو لپاره وخت ټاکل شوی دی، چې له څلوېښتو شپو به يې زيات نه پرېږدو".

نو دا هغه تر ټولو زيات برید دی، چې له دې زيات پرېښودل يې روانه دي. نور نو چې لږ هم لويېږي بايد واخيستل شي او د لږې مودې بريد يې نشته. هر وخت دې چې مناسبه ګڼله، خوښه دې وه او اړتيا دې محسوسوله اخله يې.

[1]- رواه مسلم.

# ګنده خور ځاروی

د اسلام د پاکۍ، نظافت او طهارت له بنسټونو او حکمتونو څخه دا هم دی، چې د هغه ځاروي غوښه يا شېدې خوړل منع دي، چې د انسان يا بل حيوان ګندګي، ميتيازې او سوټې يا بل ناولی شی خوري.

همدارنګه د هغو چرګو او مرغانو غوښې او هګۍ خوړل هم منع دي چې دا کار کوي.

په يو حديث کې داسې راځي:

عن ابن عمر قال: " نهٰى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن أكل الجلالة وألبانها".[1]

له عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: "رسول الله صلى الله عليه وسلم د ګنده خور ځاروي د خوړلو او دهغو له شېدونه منع کړې ده".

(جلاله) هغه ځاروي يا هغه مرغه او حيوان ته ويل کېږي، چې ګنده خور وي. د ګنده خور غوښه، شېدې او هګۍ خوړل منع دي.

ګنده خور ځاروی او مرغه به له دريو تر څلوېښتو ورځو تړل کېږي او پاک واښه او خواړه به ورکول کېږي، تر څو يې له بدن څخه د ناولتوب اثر ورک شي او غوښه يې پاکه شي. لږ تر لږه درې ورځې

---

[1]- رواه الترمذي وابوداود.

چې وتړل شي او پاک خوراک څښناک پرې وشي، هم کفايت کوي؛ خو که زيات وو نو لاښه ده.

خو هر څاروی او هر چرګ يا هر حيوان (جلاله) نه وي؛ د يو يادوه و په ليدو د ټول کلي يا ټول ولس څاروي او چرګان (جلاله) او ګنده خور نه ګڼل کېږي، کوم چې وليدل شي؛ هماغه بايد په نښه او وتړل شي.

دا د ولړې له امله کوي؛ که يو څاروی يا چرګ په پاکو موړ وساتل شي؛ بيا دا ناپاکه او ګنده شيان نه خوري.

او په خوړو کې اکثريت ته اعتبار دی، چې اکثر خواړه يې ګنده وي؛ هغه ګنده خور دی.

## د مسواک وهل

مسواک د خاصو او ځانګړيو ونو نيلې دي، چې د غاښونو او خولې د پاکولو لپاره وهل کېږي. دا هم د اسلام په پاکۍ او پاکۍ ته په پاملرنې دلالت کوي.

په حديث کې داسې راځي:

عن عائشة قالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "السواك مطهرة للفم مرضات للرب".[1]

[1]- رواه احمد والنسائى والدارمي و الشافعى.

له عائشې رضی الله عنها نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "مسواک د خولې د پاکولو يوه آله ده او د رب د رضا لامل دی".

مسواک د وريو د کلکولو، د غاښونو د قوت، د حافظې د تقويې او نورو ګڼو ګټو لپاره ډېر ښه شی دی.

دا اوسني دپلاستيک برشونه او کريم ډېر تاوانونه او ضررونه هم لري او دمسواک غوندې ګټور هم نه دي.

## لس فطري پاکۍ

په يو حديث کې د پاکۍ لس فطري کارونه داسې راغلي دي:

عن عائشة قالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "عشر من الفطرة: قص الشارب إعفاء اللحية والسواك واستنشاق الماء وقص الأظفار وغسل البراجم ونتف الإبط وحلق العانة وانتقاص الماء يعنى الإستنجاء" قال الراوى: ونسيت العاشرة إلا أن تكون المضمضة.[1]

له عائشې رضی الله عنها نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه و سلم فرمايلي دي: "لس کارونه له فطرت څخه دي:

[1]- رواه مسلم.

- د برېتونو لنډول.
- د ږيرې پرېښودل.
- د مسواک وهل.
- په پوزې کې اوبه سونول.
- د نوکانو غوڅول.
- د ګوتو د بندونو له پاسه د ګونجو وينځل.
- د تخرګونو د وېښتانو ايستل.
- له نامه لاندې وېښتان خرېيل.
- په اوبو استنجاء کول.
- راوي وايي، چې لسمه مې هېره شوه؛ خو کېدای شي، چې د خولې وينځل وي.

## سپي جوته کړی لوښی

د اسلام د پاکيو له حکمونو نه يو حکم دا هم دی، چې کله سپی په کوم لوښي کې خوله ووهي او جوته يې کړي، نو هغه به اوه ځل وينځل کېږي، چې لومړی ځل به يې په خاورو وي او نور شپږ په اوبو.

په حديث کې داسې راغلي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " إذا شرب الكلب فى إناء أحدكم فليغسله سبع مرات" وفى رواية: "طهور

إناء أحدكم إذا ولغ فيه الكلب أن يغسله سبع مرات أولهن بالتراب".[1]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل:

"په تاسو کې چې د چالوښي کې سپی څه وڅښي، نو اوه ځل دې يې ووينځي" او په يو روايت کې داسې دي، چې: "ستاسو د چالوښی چې کله سپي جوته کړی وي، نو دهغې پاکول داسې دي، چې اوه ځله به يې ووينځي او لومړی ځل به يې په خاورو وي".

## د تهذيب او ادابو دين

اسلام خپل معتنقين او منونکي د ځناورو غوندې بې بريده او بې تهذيبه نه پرېږدي؛ بلکه له انسان نه يو مهذب، شريف، ادبناک، پاک، محترم، معزز، پياوړی او صالح انسان جوړوي.

اسلام د انساني ژوند د هر ګوټ، هر پړاو، هر اړخ او هر قدم لپاره ښکلي موازين، آداب او کړنلارې ټاکلې دي.

---

[1] ـ رواهما البخاری ومسلم.

# ريښتيا ويل

اسلام په ريښتيا ويلو او له ريښتينو سره په ملګرتيا امر کوي.

الله تعالی فرمايي:

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اتَّقُواْ اللّهَ وَكُونُواْ مَعَ الصَّادِقِينَ".[1]

".اې مؤمنانو! له الله نه ووېرېږئ او له ريښتينو سره ملګري شئ".

او فرمايي:

"وَإِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُواْ".[2]

"او کله مو چې خبره کوله، نو انصاف کوئ".

او فرمايي:

"وَلاَ تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولـئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْؤُولاً".[3]

"او هغه څه پسې مه کېږه، چې خبر ترې نه يې؛ له غوږونو، سترګو او زړونو ټولو نه پوښتنه کېږي".

او لکه څرنګه چې په ريښتيا ويلو حکم کوي، له دروغو ويلو نه په سخته منع کوي.

الله تعالی فرمايي:

---

[1]- سورة التوبة: ۱۱۹.

[2]- سورة الانعام: ۱۵۲.

[3]- سورة الاسراء: ۳٦.

"وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ". ۱

" د دروغو له وينا څخه ځانونه وژغورئ".

او د مؤمنانو كره صفتونه داسې څرګندوي:

"وَالَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ وَإِذَا مَرُّوا بِاللَّغْوِ مَرُّوا كِرَامًا". ۲

" (درحمان ذات بندګان) هغه خلک دي، چې دروغ نه وايي او كله چې په عبثو كارونو تېرېږي، نو په عزت پرې تېرېږي".

د ريښتياو د ويلو په ترغيب او له دروغو نه د ځان ساتلو په هكله په يوحديث كې داسې لولو:

عن عبدالله بن مسعود قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "عليكم بالصدق فإن الصدق يهدى إلى البر و إن البر يهدي إلى الجنة و مازال الرجل يصدق و يتحرى الصدق حتى يكتب عندالله صديقا و إياكم والكذب فإن الكذب يهدي إلى الفجور و إن الفجور يهدى إلى النار و مازال الرجل يكذب ويتحرى الكذب حتى يكتب عندالله كذابا". ۳

له عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: " تاسو ريښتيا ووايئ؛ ځكه چې ريښتيا نېكۍ ته لارښوونه كوي او نېكي جنت ته لار ښوونه كوي، يو سړی تل ريښتيا وايي او په ريښتياو كې سوچ كوي، تر دې چې له الله سره ريښتونی وليكل شي. او له دروغو ځان وژغورئ، ځكه چې دروغ ګناه ته لار ښوونه كوي او

---

[1]- سورة الحج: ۳۰.
[2]- سورة الفرقان: ۷۲.
[3]- رواه البخارى ومسلم.

ګناه اورته لاږښوونه کوي، يو سړی تل دروغ وايي او په دروغو کې فکر کوي تر دې، چې له الله سره دروغجن وليکل شي".

په يو بل حديث کې د دروغو په هکله داسې راغلي دي:

عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "إذا كذب العبد تباعد عنه الملك ميلا من نتن ماجاء به".[1]

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "کله چې يو بنده دروغ ووايي، نو د دروغو د بدبويي له کبله پرښته ترې يو ميل لرې شي".

په بل حديث کې د دروغو په هلکه داسې راغلي دي:

عن سفيان بن أسدالخضري قال: سمعت: رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "كبرت خيانة أن تحدث أخاك حديثا هولك به مصدق وأنت به كاذب".[2]

له سفيان بن اسد خضري رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: " دا ډېر لوی خيانت دی، چې ته خپل ورورته يوه خبره وکړې، هغه تا پکې رېښتينی ګڼي؛ خوته پکې دروغجن يې".

دروغ ويل له هيچا سره روانه دي تر دې، چې ماشوم ته هم دروغ ويل ناروا دي. لکه چې په حديث کې داسې راځي:

[1]- رواه الترمذی.
[2]- رواه ابو داود.

عن عبدالله بن عامرقال: دعتنى أمي يوماً و رسول الله صلى الله عليه وسلم قاعد في بيتنا فقالت: ها تعال أعطيك. فقال لها رسول الله صلى الله عليه وسلم: " ما أردت أن تعطيه؟" قالت: أردت أن أعطيه تمرا. فقال لها رسول الله صلى الله عليه وسلم :" أما إنك لو لم تعطيه شيئا كتبت عليك كذبة".١

له عبدالله بن عامر رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې (زه ماشوم وم) او رسول الله صلى الله عليه وسلم زمونږ په كور كې ناست ؤ؛ زه خپلې مور را وغوښتم او راته ويې ويل: راشه چې څه شى دركړم. رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: "څه وركول غواړې؟" هغې وويل: غواړم چې خورما وركړم. رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: "كه تا ورته څه شى نه واى وركړى، نو يو دروغ به درباندې ليكل شوي وو".

دا د اسلام هغه سالمه تربيه ده، چې مور، پلار اونور سرپرستان بايد ماشومانو ته هم دروغ ونه وايي؛ ځكه چې هغوى بيا دروغ ويل زده كوي او په زړه كې وايي، چې مور يا پلار مې راته دروغ وويل؛ زه به يي هم وايم. له بله پلوه مور او پلار ورته په دروغو ويلو بدهم ښكاري، نو د ماشومانو د سالمې روزنې لپاره بايد هغوى ته رېښتيا وويل شي، په رېښتيا ويلو او په ژمنو وفا كولو باندې عادت او وروزل شي.

١- رواه ابو داود والبيهقي.

## د رېښتيا ګواهي

اسلام خپلو منونکيو ته حکم کوي، چې د رېښتيا او حق ګواهي وکړئ. د رېښتيا په ګواهۍ کلک ودرېږئ او حق مه پټوئ.

الله تعالی فرمايي:

"وَالَّذِينَ هُم بِشَهَادَاتِهِمْ قَائِمُونَ". ۱

"او (مؤمنان) هغه خلک دي، چې هغوی په خپلو ګواهيو باندې ولاړ وي".

او فرمايي:

"وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ وَمَن يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ" ۲

"ګواهي مه پټوئ او چاچې ګواهي پټه کړه، نو د هغه زړه ګناهګار دی".

او فرمايي:

"وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ". ۳

"حق له باطل سره مه ګډوئ او په داسې حال کې چې ښه پوهېږئ، حق مه پټوئ".

---

[۱]- سورة المعارج: ۳۳.

[۲]- سروة البقرة : ۲۸۳.

[۳]- سورة البقرة: ٤۳.

## د امانت ساتل

اسلام د امانت په خوندي ساتلو امر كوي او له خيانت نه په سختۍ سره منع كوي .

الله تعالى فرمايي:

"وَالّذِينَ هُمْ لأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ". ۱

" او (مؤمنان) هغه خلک دی، چې هغوی د خپلو امانتونو اوژمنو ساتونكي دي".

او فرمايي:

"إِنّ الله يَأمُرُكُمْ أن تُؤدُّوا الأَمَانَاتِ إِلَى أهْلها". ۲

" الله بې شكه تاسو ته امر كوي چې امانتونه خپل اهل ته وسپارئ".

په يو حديث كې د منافق درې نښې داسې راغلې دي:

عن ابي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :

"آية المنافق ثلاث: إذا حدث كذب و إذا وعد أخلف و إذا ائتمن خان". ۳

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " دمنافق نښې درې دي: كله چې خبرې كوي، نو دروغ وايي: كله چې ژمنه كوي، نو خلاف

[1]- سورة المؤمنون: ۸. سورة المعارج: ۳۲.
[2]- سورة النساء: ۵۸.
[3]- رواه البخارى ومسلم.

يې کوي او کله چې امانت ورسره کېښودل شي، نو خيانت پکې کوي".

او په بل روايت کې د منافق نښې داسې وينو:

عن عبدالله بن عمرو قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "أربع من كن فيه كان منافقا خالصا ومن كانت فيه خصلة منهن كانت فيه خصلة من النفاق حتى يدعها: إذائتمن خان و إذا حدث كذب و إذا عاهد غدر و إذا خاصم فجر".١

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "څلور خويو نه دي چې په چاکې وو، نو نږه منافق دى او په چا کې چې له دې نه يو خوى هم وي، نو په هغه کې تر هغې د نفاق يو خوى دى، چې تر څو يې پرېږدي: کله چې امانت ورسره کېښودل شي، نو خيانت پکې کوي، کله چې خبرې کوي؛ دروغ وايي، کله چې تړون وکړي؛ ماتوي يې او کله چې جګړه کوي؛ سپکې سپورې وايي".

د امانت د ساتلو او پکې د درغلۍ نه کولو، په تړون او ژمنې د وفا کولو او د خيانت او ژمنې د ماتولو په هکله په حديث کې داسې راغي:

عن أنس قال: قلما خطبنا رسول الله صلى الله عليه وسلم إلا قال: "لا إيمان لمن لا أمانة له ولا دين لمن لا عهد له".٢

---

١- رواه البخارى ومسلم.
٢- رواه البيهقى فى شعب الايمان.

له أنس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې کله خطبه لوسته، نو اکثره به يې پکې دا ويل: "څوک چې امانت نه ساتي؛ د هغه ايمان نشته او څوک چې په ترون او ژمنې وفانه کوي؛ د هغه دين نشته".

امانت په هر شي کې دی، حتی چې په خبرو کې هم هغه خبره امانت ده، چې ويونکی يې نه غواړي، چې بل څوک پرې خبر شي، تردې چې که درته ونه وايي او له نښو يې معلومه شي، چې بل چاته يې ويل نه غواړي؛ هم امانت ده. په حديث کې داسې راغلي:

عن جابر بن عبدالله عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "إذا حدث الرجل الحديث ثم التفت فهى أمانة". ۱

له جابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پيغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې هغه وفرمايل: "کله چې کوم سړی خبره وکړي او بيا اخوا دېخوا وګوري، نو هغه امانت دی".

د اخوا دېخوا ليدلو مطلب دا دی، چې څوک خوبه نه وي، چې زما خبرې يې اورېدلې وي. خو د ناوړه خبرې او کار، د ګناه اوظلم پټول ناروا دي. په حديث کې داسې راغلي:

عن جابر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :
" المجالس بالأمانة إلا ثلاثة مجالس: سفك دم حرام اوفرج حرام او اقتطاع مال بغير حق". ۲

---

[۱]- رواه الترمذي و أبوداود.
[۲]- رواه ابوداود.

له جابر رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: " د ناستې ځایونه له امانت سره وي؛ خو درې مجلسونه امانت نه دي: په ناروا د چاوینه تویول، یا زنا کول او یا په ناحقه د چا مال اخیستل".

په امانت پوره سپارلو سربېره له هغه چاسره هم خیانت کول منع دي، چې له تاسره یې خیانت کړی وي.

په حدیث کې داسې راغلي:

عن أبي هريرة عن النبی صلی الله علیه وسلم قال: "أدالأمانة إلى من إئتمنك ولاتخن من خانك". ۱

له ابوهريرة رضي الله عنه نه روایت دی هغه له پېغمبر صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي، چې هغه وفرمایل: "چا چې درسره امانت کېښود، نو هغه ته خپل امانت وروسپاره او له هغه چاسره خیانت مه کوه، چې له تاسره یې خیانت کړی وي".

که چا درڅخه مشوره وغوښته، نو باید ښه مشوره ورکړې او راز یې هم وساتې. په حدیث کې داسې راغلي:

عن أبي هريرة قال: قال النبی صلی الله علیه وسلم: "إن المستشار مؤتمن". ۲

له ابوهريرة رضي الله عنه نه روایت هغه وایي، چې پېغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "چانه چې مشوره غوښتل شوې وي؛ هغه امانتدار گڼل شوی دی".

---

[1] - رواه الترمذي و ابو داود والدارمي.

[2] - رواه الترمذی.

## په ژمنو وفاء

اسلام له هر چاسره په ژمنو او تړونونو د وفاکولو حکم کوي او د وعده خلافۍ سخت خلاف دی.

الله تعالی فرمايي:

"وَأَوْفُواْ بِعَهْدِاللّه إِذَا عَاهَدتُّمْ وَلاَ تَنقُضُواْ الأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا". ۱

"او کله مو چې ژمنې وکړې، نو د الله په ژمنو وفا وکړئ او لوړې له پیاوړتیا وروسته مه ماتوئ".

او فرمايي:

"وَأَوْفُواْ بِالْعَهْدِ إِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْؤُولاً". ۲

"او په ژمنو وفا وکړئ، د ژمنو په هکله بې شکه پوښتنه کيږي".

اوفرمايي:

"وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ". ۳

"او (مؤمنان) هغه کسان دي، چې هغوی د خپلو امانتونو او ژمنو ساتونکي وي)).

[۱]- سورة النحل: ۹۱.
[۲]- سورة الاسراء: ۳٤.
[۳]- سورة المؤمنون: ۸ . سورة المعارج: ۳۲.

## له بې وزلو سره ښېګړه

اسلام د بډايانو په مال کې څه حقوق ټاکلي دي، چې له هغوی به اخيستل کېږي او په بې وزلو او مستحقينو به وېشل کېږي.

اسلام نه د غربيانو پنګه وال نظام مني، چې بډايان به بې بريده بې دريغه ، بې کچه او بې خرته مالونه راټولوي او د بې وزلو او غريبانو به پکې هيڅ ونډه نه وي. او نه د سوسيالستانو او کمونستانو اشتراکي نظام مني، چې د شخصي پنګې حق غصبوي. بلکه اسلام د دې دواړو نظامونو تر منځ د عدل او انصاف نظام پلی کوي.

اسلام هر چاته د شخصي پنګې د لرلو حق ورکوي؛ خو څه بريدونه او بنستونه ورته ټاکي. اسلام خپلو منونکيو ته حکم کوي، چې سود به نه خوري، د چاحق به نه غصبوي، ظلم به نه کوي، د دروغو او ټګی سوداګري به نه کوي، هغه ټولې مجهولې سوداګرۍ او بيعې (اخيستل پلورل) او عقود (تړونونه) به نه کوي، چې له دواړو خواونه يو لورته پکې د تاوان احتمال او اندېښنه وي او جوته او څرګنده نه وي، يا پکې څه ټګي برګي او درغلي وي. د خپلو تجارتي توکيو عيب به نه پټوي، دروغ به پکې نه وايي، تېزول به نه کوي، دلالي به نه کوي، پلورونکی يا پيردونکی به د بازار له نرخ نه ناخبره نه ساتي، مېوې او غلې به وچ په لمدو يا لامده په وچو نه پلوري، د لنګې غلانځې کې به د ټګی لپاره

شېدې نه جمع کوئ، نسيا په نسيا به نه پلورئ، استثنايي بزګرى او ټاکلې اجارې باندې به ځمکه نه ورکوئ، دبيانې پلورل اخيستل به نه کوئ. چې لا پوخ شوي نه وي او له آفت نه خوندي شوي نه وي، ولاړ کښتونه او مېوې به نه پلورئ، بيع او شرط به نه جمع کوئ، يوې بيعې کې به دوه نه جمع کوئ، د چاله مجبوريت به داسې ناوړه ګټه نه اخلئ، چې يو شى پرې په نسياله نرخه زيات وپلورئ او بيرته يې ترې په نغدو ارزانه واخلئ، او په دې توګه سود ته حيله جوړه کړئ، چې لږې پيسې ورکړئ او بيا نېټې کې ترې ډېرې واخلئ. چې دا هريو بيل بيل نوم او احکام لري. لکه: منابذه، مزابنه، محاقله، مخابره، بيع العينه، بيع و شرط، بيعتين فى بيعة، مناجشه، ملامسه او نور.....

چې د حديثو او فقهې په کتابونو کې يې تفاصيل او احکام راغلي دي.

همدارنګه اسلام حکم کوي، چې چا بې مالکه او حکومتي شاړه آباده کړه؛ هغه د هغه شوه:

لکه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

"من أحيا ارضا ميتة فهي له".[1]

"چا چې شاړه ځمکه آباده کړه؛ هغه د هغه شوه".

له بې وزلو او محتاجو سره د ښېګړې فضيلت په حديث کې په دې ډول راغلى دى :

---

[1]- رواه البخاري و مسلم والترمذي والنسائي وابوداود وابن حبان والبيهقى والطبراني ومالك.

عن أنس قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "من أغاث ملهوفاكتب الله له ثلاثا وسبعين مغفرة واحدة فيها صلاح أمره كله وثنتان وسبعون له درجات يوم القيامة". ۱

له انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:"چا چې په بيړه د کوم اند ېښمن او حاجتمند مرسته وکړه، نو الله تعالى به ورته درې اويا (۷۳) ښښنې وليکي، چې په يوې کې به يې د ټول ژوند سمون وي او دوه اويا به ورته د قيامت په ورځ درجې وي"

د دې ټولو احکامو، شرطونو اولارښوونو لاندې، چې چا هر ځومره مال وګاټه؛ هغه د هغه حق دی؛ خو دانه ده، چې ګنې نور حقوق پکې نشته. اسلام مالونو ته خپل خپل نصابونه ټاکلي دي کله چې د چا مال نصاب ته ورسېږي، نو بيا پرې زکاة فرض دی، چې د غريبانو او بې وزلو حق دی.

کښتونه او غلې دانې چې کله واخيستل شي، نو د درمندونو په وخت کې به ترې لسمه برخه ورکوي او نصاب يې پنځه وسقه دی، چې يو وسق شپېته صاعه دی او صاع پاو کم درې کيلو دی، نو په دې ترتيب د غلو دانو نصاب پنځه وسقه دی، چې د افغانستان په اوه کيلو يې منه له (۱۱۷) يوسل او اولس منونو سره سمون خوري.

کله چې غلې دانې دې نصاب ته ورسېږي، نو د درمندپه وخت کې پرې لسمه برخه زکات دی او له دې کمو کې زکات نشته.

---

[1] - رواه البيهقى فى شعب الايمان.

او د لګښت په اوبو چې خړوبه شوی وي، په هغه کې په همدې نصاب شلمه ده. لکه په ماشين يا ارټ چې را و اوځي.

همدارنګه دغواؤ او مېښو نصاب (۳۰) دېرش څاروي دی؛ د مېږو او اوزو نصاب (۴۰) څلوېښت پسه دی، د اوښانو نصاب (۵) پنځه اوښان دي، د نغدو نصاب (۲۰) شل مثقاله سره زر دي. چې اوه نيمې تولې کېږي. همدارنګه د ټولو اموالو نصابونه او احکام د حديثو او فقهې د کتابونو په کتاب الزکات کې وګورئ. غلو دانو کې د درمند په وخت کې زکات دی. نغدو او څارويو کې د کال په تېرېدلو دی، چې د لاس ته راوړلو له ورځې څخه اخوا يو کال پوره شي، نو زکات به يې ورکوي. او هر کال په همدې ترتيب زکات ورکول فرض دي، چې ګڼ تفاصيل لري او د حديثو او فقهې د کتابونو په خپلو بابونو او کتابونو کې يې وګورئ.

همدارنګه دواړه اختر په ورځ په هر مسلمان نارينه، ښځينه، غټ او ووړ سرسايه ده، چې بې وزلو ته به يې د کور کفيل ورکوي.

همدارنګه مختلفې کفارې دي، چې تفصيل يې دلته د اوږدېدو لامل ګرځي او د اسلام په کتابتون کې ټول شته.

په دې ټولو سربېره رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

"إن فى المال لحقاسوى الزكاة".[۱]

"په مال کې په زکات سربېره نور حق هم شته".

---

[۱]- رواه الترمذي والدارقطني والبيهقى والطبراني والدارمي وأبونعيم في معرفة الصحابة.

نو اسلام په زکات او په زکات سربېره هم د خيرات ورکولو او له بې وزلو فقيرانو، مسکينانو، غريبانو او مستحقينو سره د مرستې په کولو امر کوي، ټينګار پرې کوي او مسلمانان ورته هڅوي.

الله تعالی فرمايي:

"إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاء وَالْمَسَاكِينِ وَالْعَامِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَارِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ فَرِيضَةً مِّنَ اللّهِ وَاللّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ". [۱]

"خيراتونه او زکاتونه د بې وزلو، غريبانو، د زکات راټولوونکيو مامورينو، له دين سره د مينې پيدا کوونکيو، د غلامانو او بنديانو د ازادولو، پوروړيو، د الله په لار کې او مسافرو لپاره دي. دا د الله له لوري فرض دي او الله ډېر پوه اود حکمت څښتن دی".

او د نېکانو او نېکۍ په هکله فرمايي:

"وَآتَى الْمَالَ عَلَى حُبِّهِ ذَوِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَالسَّآئِلِينَ وَفِي الرِّقَابِ". [۲]

" او (نېکان هغه خلک دي)، چې له مال سره د مينې سره سره يې خپل مال خپلوانو، يتيمانو، بې وزلو، مسافرو، سوال کوونکيو او د غلامانو، وينځو او بنديانو په ازادولو کې ورکړ".

او فرمايي:

---

[۱]- سورة التوبة: ٦٠.

[۲]- سورة البقرة: ١٧٧.

"يَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ قُلْ مَا أَنفَقْتُم مِّنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالأَقْرَبِينَ وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا تَفْعَلُواْ مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللّهَ بِهِ عَلِيمٌ".[1]

" تا پوښتي چې څه ډول لګښت وکړي؟ ورته ووايه: څه چې لګوئ، د نومور او پلار، خپلوانو، يتيمانو، بې وزلو او مسافرو لپاره دي او هر د ښېګړې کار چې وکړئ، نو الله پرې ښه پوه دی".

او فرمايي:

"قُل لِّعِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُواْ يُقِيمُواْ الصَّلاَةَ وَيُنفِقُواْ مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلانِيَةً مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لاَّ بَيْعٌ فِيهِ وَلاَ خِلاَلٌ".[2]

" زما مؤمنو بندګانو ته ووايه، چې لمونځ وکړئ او له دې مخکې چې هغه ورځ راشي، چې نه به پکې پلورل پېرودل وي او نه دوستي، له هغه مال نه لګښت وکړي، چې مونږ ورکړی دی".

او فرمايي:

"إِن تُبْدُواْ الصَّدَقَاتِ فَنِعِمَّا هِيَ وَإِن تُخْفُوهَا وَتُؤْتُوهَا الْفُقَرَاء فَهُوَ خَيْرٌ لُّكُمْ وَيُكَفِّرُ عَنكُم مِّن سَيِّئَاتِكُمْ وَاللّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ".[3]

"که خيراتونه څرګند کړئ، نو داهم ښه ده؛ خو که پټ يې کړئ او بې وزلانو ته يې ورکړئ، نو دا تاسو لپاره غوره ده، ستاسو ګناوې به درځخه لرې کړي او تاسو چې څه کوئ الله پرې ښه خبر دی".

---

[1]- سورة البقرة: ۲۱۵.
[2]- سورة ابراهيم.۳۱.
[3]- سورة البقرة: ۲۷۱.

د دې لپاره، چې بې وزلی اوغریب شرم او خجالت محسوس نه کړي او عزة النفس يې مجروح نه شي، نو الله تعالی وفرمایل، چې که خيراتونه پټ بې وزلانو ته ورکړئ، نو داتاسو لپاره ډېره غوره ده.

اسلام له بې وزلي سره د مرستې کولو حکم کوي او د مرستې په ترڅ کې د بې وزلي د عزة النفس خيال هم ساتي. نو څومره د ښېگړې دين دی؟!.

او فرمايي:

"وَاعْبُدُواْ اللهَ وَلاَ تُشْرِكُواْ بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالجَنبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ إِنَّ اللهَ لاَ يُحِبُّ مَن كَانَ مُخْتَالاً فَخُوراً".[۱]

"د الله عبادت وکړئ، له هغه سره هيڅ شی مه شريکوئ او له مور او پلار، خپلوانو، يتيمانو، بې وزلو، خپلوان گونډي، دخوا گونډي، دخوا ملگري، مسافر او غلامانو وينځو سره ښېگړه وکړئ. الله بې شکه هغه څوک نه خوښوي، چې کبرجن اوځان ته غره وي".

او فرمايي:

"وَآتِ ذَا الْقُرْبَى حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَلاَ تُبَذِّرْ تَبْذِيراً".[۲]

[۱]- سورة النساء:۳٦.
[۲]- سورة الاسراء: ۲٦.

"خپلوانو، بې وزلو او مسافرو ته خپل حق ورکړه او اسراف بېخي مه کوه".

او فرمايي:

" لَن تَنَالُواْ الْبِرّ حَتّى تُنفِقُواْ مِمّا تُحِبُّونَ وَمَا تُنفِقُواْ مِن شَيْءٍ فَإِنَّ الله بِه عَلِيمٌ". ۱

" نېکي تر هغه لاس ته نه شئ راوړی، تر څو چې له هغه مال نه لګښت وکړئ، چې خوښوئ يې. او څه شی چې خيرات کړئ، نو الله بې شکه په هغه ښه پوه دی".

له دې څرګنده شوه، چې خيرات کول او له بې وزلانو سره مرسته کول، له هغه مال نه په کار دي، چې خپله يې د ځان لپاره هم خوښوي. او څه چې له ځان لپاره نه خوښوي او له نظره پرېوتی او بې کاره مال وي؛ له هغه نه خيرات کول سم نه دي. خيرات له حلال او پاک مال نه په کار دی.

الله تعالى فرمايي:

" يَا أَيُّهَا الّذِينَ آمَنُواْ أَنفِقُواْ مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الأَرْضِ وَلاَ تَيَمّمُواْ الْخَبِيثَ مِنْه تُنفِقُونَ وَلَسْتُم بِآخِذِيهِ إِلاّ أَن تُغْمِضُواْ فِيهِ وَاعْلَمُواْ أَنّ الله غَنِيٌّ حَمِيدٌ". ۲

"ای مؤمنانو! له هغو پاکو مالونو نه خيرات ورکوئ، چې تاسو ګټلي دي، او له هغو هم چې مونږ تاسو لپاره له ځمکې را ايستلي دي. د هغو ناپاکو اراده مه کوئ، چې نوروته يې ورکوئ او

[1]- سورة آل عمران:۹۲.
[2]- سورة البقرة: ۲۶۷.

خپله يې له سترګو پټولو پرته اخيستونکي نه يئ، او په دې وپوهېږئ، چې الله بې پروا او ستايل شوى دى".

همدارنګه د ميراث د وېش په وخت کې الله تعالى په خيرات ورکولو حکم کوي او فرمايي:

" وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُوْلُواْ الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينُ فَارْزُقُوهُم مِّنْه وَقُولُواْ لهمْ قَوْلاً مَّعْرُوفًا". ۱

"او کله چې دميراث وېش ته خپلوان، يتيمان او بې وزلان حاضر شول، نو هغوى ته هم ترې څه ورکړئ. او ښه خبره ورته وکړئ".

او فرمايي:

"وَهُوَ الَّذِي أَنشَأَ جَنَّات مَّعْرُوشَات وَغَيْرَ مَعْرُوشَات وَالنَّخْلَ وَالزَّرْعَ مُخْتَلِفًا أُكُله وَالزَّيْتُونَ وَالرُّمَّانَ مُتَشَابِها وَغَيْرَ مُتَشَابه كُلُواْ من ثَمَره إِذَا أَثْمَرَ وَآتُواْ حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ وَلاَ تُسْرِفُواْ إِنه لاَ يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ". ۲

"الله هغه ذات دى، چې د چت والا او بې چته باغونه، خورما او کښتونه، چې ډول ډول خوندونه يې دي او ښونه (زيتون) او انار يې پيدا کړي دي، چې سره ورته او بدل بدل دي. کله چې مېوې وکړي، نو مېوې يې خورئ، د لو او د راټولولو په ورځ يې حق ورکړئ او اسراف مه کوئ. الله اسراف کوونکي نه خوښوي".

او دمؤمنانو په ځانګړتياو کې دا هم فرمايي:

---

[1]- سورة النساء: ۸.

[2]- سورة الانعام: ۱٤۱.

"وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَى حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللهِ لاَ نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَاءً وَلاَ شُكُورًا". ۱

"او سره له مينې بې وزلي، يتيم او بندي ته خواړه ورکوي او ورته وايي، چې مونږ يوازې د الله د مخ لپاره تاسوته خواړه درکوو، له تاسو نه نه بدله غواړو او نه مننه".

همدارنګه د نېکانو مؤمنانو په ځانګړتياو کې دا هم ګڼي چې:

"وَالَّذِينَ فِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُومٌ لِّلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ". ۲

"او (لمونځ کوونکي) هغه خلک دي، چې د هغوی په مالونو کې د سوال کوونکي او بې برخې لپاره ټاکلی حق وي".

او فرمايي:

"فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلاَ تَقْهَرْ وَأَمَّا السَّائِلَ فَلاَ تَنهَرْ". ۳

"په يتيم غوسه مه کوه او سوال کوونکی مه رټه".

همدارنګه الله تعالی خيرات کوونکي ته حکم فرمايي، چې چاته دې خيرات ورکړ، نو بيا يې پرې مه زباتوه او بدې ردې ورته مه وايه:

"الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ لاَ يُتْبِعُونَ مَا أَنفَقُواْ مَنًّا وَلاَ أَذًى لَّهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ قَوْلٌ مَّعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّن صَدَقَةٍ يَتْبَعُهَآ أَذًى وَاللهُ غَنِيٌّ حَلِيمٌ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تُبْطِلُواْ صَدَقَاتِكُم بِالْمَنِّ وَالأذَى كَالَّذِي يُنفِقُ

[1]- سورة الدهر: ۸- ۹.
[2]- سورة المعارج: ۲٤- ۲٥.
[3]- سورة الضحى: ۹- ۱۰.

مَاله رِئَاء النّاس وَلاَ يُؤْمنُ بالله وَالْيَوْمِ الآخر فَمَثَله كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْه تُرَابٌ فَأَصَابه وَابِلٌ فَتَرَكَهُ صَلْداً لاّ يَقْدِرُونَ عَلَى شَيْءٍ مِّمّا كَسَبُواْ وَالله لاَيَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ". [۱]

"هغه خلک چې د الله په لار کې خپل مالونه خیراتوي او بیا یې چې څه خیرات کړي وي؛ هغو پسې زبات او بدې ردې نه وايي؛ هغوی لپاره له خپل رب سره بدله ده او په هغوی به نه وېره وي او نه به خفه کېږي. ښه وینا او ښښنه له هغه خیرات نه ښه ده، چې بدې ردې ورپسې وايي. او الله بې پروا او ډېر زغمونکی دی. ای مؤمنانو! خپل خیراتونه په زبات او بدو ردو ویلو دهغه چا غوندې مه بربادوئ، چې خپل مال خلکو ته د ځان ښودلو لپاره لګوي او په الله او د قیامت په ورځ ایمان نه راوړي. نود هغه (دخیرات) مثال د هغه ښویې تېږې غوندې دی، چې په هغې خاوره پرته وي او تېز باران پرې وشي، نو پاکه یې پرېږدي، چې څه یې کړي وي؛ په هغو یې هیڅ وس نه رسېږي. او الله کافرانو خلکو ته لار ښوونه نه کوي".

د اسلام دین څه ښکلی دین دی، چې بډایانو ته وايي: ستاسو په مال کې د خپلوانو، یتیمانو، بې وزلو، ګونډیانو، بندیانو، پوروړیو او مسافرو حق دی؛ هغوی ته به هم خیرات او زکات ورکوئ، هم به ورسره مرسته کوئ او د حلالو، پاکو، ښو اوهغو مالونو نه به یې کوئ، چې تاسو یې د خپل ځان لپاره خوښوئ؛ بیا به نه په هغوی زبات کوئ اونه به ورته بده خبره کوئ؛

[۱]- سورة البقرة: ۲٦۲- ۲٦٤.

بلکه ښه خبره او ښه سلوک به ورسره کوئ. او دا د هغوی حق دی؛ د الله تعالی دنږه رضا لپاره به يې کوئ.

## له يتيمانو سره ښېګړه

اسلام يتيمانو (پلار مړيو ماشومانو) ته زياته پاملرنه کوي او له هغوی سره د ښېګړې کولو زيات تاکيد او ټينګار کوي.
الله تعالی فرمايي:
"وَآتُواْ الْيَتَامَى أَمْوَالهمْ وَلاَ تَتَبَدَّلُواْ الْخَبِيثَ بِالطَّيِّبِ وَلاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالهمْ إِلَى أَمْوَالِكُمْ إِنه كَانَ حُوبًا كَبِيراً".[۱]
"يتيمانو ته خپل مالونه ورکړئ، خپل ناپاکه د هغوی په پاکو باندې مه بدلوئ او دهغوی مالونه له خپلو مالونو سره مه خورئ؛ دا بې شکه لويه ګناه ده".
نو اسلام حکم کوي، چې د يتيمانو مالونه د هغوی لپاره تر هغه امانت وساتئ او په حلال تجارت د زياتولو کوښښ يې وکړئ، تر څو چې يتيم بالغ او د خپلو مالونو د ساتلو وړ شي. او دا کار به د هغه په ازمېيلو کوئ، چې رېښتيا هم د خپلو مالونو دخوندي کولو او ساتلو وړ دی او که نه؟ لکه چې فرمايي:
"وَابْتَلُواْ الْيَتَامَى حَتَّىَ إِذَا بَلَغُواْ النِّكَاحَ فَإِنْ آنَسْتُم مِّنهمْ رُشْدًا فَادْفَعُواْ إِلَيْهِمْ أَمْوَالهمْ وَلاَ تَأْكُلُوهَا إِسْرَافًا وَبِدَارًا أَن يَكْبَرُواْ

[۱]- سورة النساء: ۲.

وَمَن كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ وَمَن كَانَ فَقِيراً فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوفِ فَإِذَا دَفَعْتُمْ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ فَأَشْهِدُواْ عَلَيْهِمْ وَكَفَى بِاللهِ حَسِيبًا". ۱

"يتيمان وازمېيئ تر دې، چې كله د واده شول؛ كه پوهه مو پکې وموندله، نو هغوی ته خپل مالونه ورکړئ. او له دې وېرې، چې هغوی لوی نه شي؛ ډېر ډېر او زر زر يې مه خورئ. څوك چې بډای ؤ، نو ځان دې ترې وژغوري او څوك چې بې وزلی ؤ، نو په ښه دود دې وخوري؛ كله مو چې هغوی ته خپل مالونه وركول، نو ګواهان پرې ونيسئ. او الله حساب كوونكی بس دی".

معنی دا چې د يتيم د مال ساتونكی او د يتيم سرپرست د هغه د سرپرستۍ او دهغه د مالونو د ساتلو او ډېرولو په بدل کې له دود سره سم د هغه له مال نه خوراك كولی شي؛ خو كه بډای وي، نو چې ويې نه كړي ښه ده.

خو كه محتاج ؤ، نو هم له دې وېرې به د يتيم مال ډېر ډېر او زر زر بې ځايه نه خوري، چې يتيم لوی نه شي، سبا به را څخه خپل مال غواړي.

او فرمايي:

"إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَاراً وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيراً". ۲

---

[1]- سورة النساء: ٦.

[2]- سورة النساء : ١٠.

"هغه خلک چې په ظلم د يتيمانو مالونه خوري؛ هغوی په خپلو خېټو کې اور خوري او زر ده، چې سوځوونکي دوزخ ته به ننوځي".

او فرمايي:

"وَاعْبُدُواْ اللّه وَلاَ تُشْرِكُواْ به شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى".[1]

"د الله عبادت وکړئ، له هغه سره هيڅ شی مه شريکوئ او له مور او پلار، خپلوانو او يتيمانو سره نېکي وکړئ".

او فرمايي:

"وَأَن تَقُومُواْ لِلْيَتَامَى بِالْقِسْطِ".[2]

"او (په دې تاسو ته حکم کوي) چې د يتيمانو لپاره په انصاف ودرېږئ".

او فرمايي:

"وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْيَتَامَى قُلْ إِصْلاَحٌ لهمْ خَيْرٌ وَإِنْ تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ وَاللّه يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ".[3]

"او تا د يتيمانو په هکله پوښتي؛ ورته ووايه چې هغوی لپاره رغونه ښه ده او که له هغوی سره شريکېږئ، نو هغوی ستاسو ورونه دي او الله ورانکاری او رغوونکی سره پېژني".

[1]- سورة النساء: ٣٦.
[2]- سورة النساء: ١٢٧.
[3]- سورة البقرة: ٢٢٠.

مطلب دا چې د يتيمانو اود هغوی دمال اصلاح او هغوی سره ګډه ګوزاره خير دی؛ خو که څوک د اصلاح په بانه فساد کوي، نو الله تعالی دواړه پېژني او هر چاته د خپل عمل بدله ورکوي.

اوفرمايي:

"وَلاَ تَقْرَبُواْ مَالَ الْيَتِيمِ إِلاَّ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّى يَبْلُغَ أَشُدَّهُ".۱

"او د يتيم مال ته له ښې لارې پرته تر هغه مه نږدې کېږئ، تر څو چې خپلې ځوانۍ ته ورسېږي".

او فرمايي:

"فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلاَ تَقْهَر".۲

"او په يتيم غوسه مه کوه".

همدارنګه مخکې د (بقرې) د سورت په :( ۲۱۵\۱۷۷) د (نساء) د سورت په :( ۸ ) او د (دهر) د سورت په ( ۸- ۹) آيتونو کې هم له يتيمانو سره د ښېګړې حکم تېر شو.

د يتيم د پالنې په هکله په حديث کې داسې راغلي دي:

عن سهل بن سعد قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "أنا وكافل اليتيم له ولغيره فى الجنة هكذا و أشار بالسبابة والوسطى وفرج بينهما شيئا".۳

له سهل بن سعد رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "زه او يتيم پالونکی –

[1]- سورة الانعام: ۱۵۲. سورة الاسراء: ۳٤.
[2]- سورة الضحٰى: ۹.
[3]- رواه البخارى.

خپل يې وي او كه د بل- به په جنت كې داسې يو ځاى يوو، په مسواكۍ او منځې ګوتې يې اشاره وكړه، لرې يې سره بيرته يو ځاى ونيولې".

په بل حديث كې د يتيم په هكله داسې راځي:

عن أبى هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :
"خير بيت فى المسلمين، بيت فيه يتيم يحسن إليه، و شربيت فى المسلمين، بيت فيه يتيم يساء إليه". ١

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:

" په مسلمانانو كې ښه كور هغه دى، چې په هغه كې يتيم وي او ښېګړه ورسره كېږي. او په مسلمانانو كې ناوړه كور هغه دى، چې په هغه كې يتيم وي او بد ور سره كېږي".

په بل حديث كې داسې راغلي دي:

عن أبى أمامة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :
"من مسح رأس يتيم لم يمسحه إلا لله كان له بكل شعرة تمر عليها يده حسنات و من أحسن إلى يتيمة أويتيم عنده كنت أنا وهو فى الجنة كهاتين و قرن بين إصبعيه". ٢

له ابو امامه رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "چا چې د يتيم په سر لاس راښكود او يواځې د الله لپاره يې پرې راښكود، نو په هر وېښته يې

[1]- رواه ابن ماجه.
[2]- رواه الترمذى واحمد.

چې لاس تېرېږي؛ د هغه په بدل کې به ورته ثوابونه ورکول کېږي. او له چاسره چې يتيمه وي او ښه يې ورسره وکړل، نو زه او هغه به په جنت کې داسې يوو: دواړه ګوتې يې سره نږدې کړې".

په بل حديث کې له يتيم سره د ښېګړې کولو په هکله داسې راغلي دي:

عن ابن عباس قال: قال رسول صلى الله عليه وسلم : " من آوىٰ يتيما إلى طعامه وشرابه أوجب الله له الجنة البتة إلا أن يعمل ذنبا لا يغفر".[1]

له عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "چا چې يتيم خپلې ډوډۍ او ښباک ته راوباله او پنايې ورکړه؛ که داسې ګناه يې ونه کړه، چې هغه نه ښښل کېږي، نو الله به ورته خامخا جنت ورکړي".

په بل حديث کې د زړه د سختۍ علاج له يتيم سره په مينې او ښېګړې کولو داسې ښوول شوی دی:

عن أبى هريرة أن رجلا شكا إلى النبى صلى الله عليه وسلم قسوة قلبه قال: " إمسح رأس اليتيم وأطعم المسكين ".[2]

له ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی، چې يو سړي پېغمبر صلى الله عليه وسلم ته د خپل زړه له سختۍ نه شکايت

---

[1]- رواه الترمذى.
[2]- رواه احمد.

وکړ؛ هغه ورته وفرمایل: " د یتیم په سر لاس راکاږه او بې وزلي ته ډوډۍ ورکړه".

## له مور او پلار سره ښېګړه

اسلام مور او پلار ته هم زیات اهمیت ورکوي او مسلمانانو ته حکم کوي، چې دمور او پلار خبره ومني او ښېګړه ورسره وکړي.

الله تعالی فرمایي:

"وَقَضَى رَبُّكَ أَلاَّ تَعْبُدُواْ إِلاَّ إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِندَكَ الْكِبَرَ أَحَدُهُمَا أَوْ كِلاَهُمَا فَلاَ تَقُل لَّهُمَآ أُفٍّ وَلاَ تَنْهَرْهُمَا وَقُل لَّهُمَا قَوْلاً كَرِيمًا وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُل رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا".[1]

"او ستا رب حکم کړی دی، چې له هغه پرته به د هیچا عبادت نه کوئ ؛ له مور او پلار سره به نېکي کوئ، که په هغوی دواړو کې یو یا دواړه له تاسره زړ بوډۍ ته ورسېدل، نو اوف قدرې هم ورته مه وایه، مه یې رټه، د عزت خبره ورته وکړه، د لورېنې له مخې ورته د عاجزۍ وزرې ښکته کړه او ووایه: ای زما ربه! له دې امله، چې زه یې وړوکی روزلی یم؛ په دواړو لورېنې وکړه".

او فرمایي:

"وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا".[2]

"او له مور او پلار سره ښېګړه وکړئ".

---

[1]- سورة الاسراء: ۲۳- ۲٤.

[2]- سورة الانعام: ۱٥۱.

او فرمايي:

"وَوَصَّيْنَا الإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا وَإِن جَاهَدَاكَ لِتُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلاَ تُطِعْهُمَا".[1]

" مونږ انسان ته د هغه له مور او پلار سره د ښېګړې حکم کړی دی. او که هغوی په تا باندې دا خواري وکړه، چې له ماسره هغه څه شريک کړې، چې دليل پرې درسره نشته ، نو بيا يې مه منه".

او فرمايي:

"وَوَصَّيْنَا الإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ حَمَلَتْهُ أُمُّهُ وَهْنًا عَلَى وَهْنٍ وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ إِلَيَّ الْمَصِيرُ وَإِن جَاهَدَاكَ عَلَى أَن تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلاَ تُطِعْهُمَا وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ".[2]

"او مونږ انسان ته د هغه د مور او پلار په هکله د پاملرنې حکم کړی دی، چې زما او دخپل مور او پلار شکر وکړه؛ مور يې له ډېرې کمزورۍ سره په خېټه کې بار کړی دی، له تي نه غوڅول يې په دوه کلونو کې وو؛ او يواځې ماته راستنېدل دي. او که دا خواري يې درباندې وکړه، چې له ماسره هغه څه شريک کړې، چې دليل پرې درسره نشته، نو بيا يې مه منه، په دنيا کې له دواړو سره په ښه ګوزارې اوسېږه او دهغه چاپه لارې لاړ شه، چې ماته راستون شوی دی".

---

[1]- سورة العنكبوت: ۸.

[2]- سورة لقمان: ۱٤ـ ۱٥.

مطلب دا چې د ګناه په کار کې د مور او پلار مه منه او نور په دنيوي ژوند کې ورسره ښېګړه، ښه ګوزاره او ښه سلوک کوه.

او فرمايي:

"وَوَصَّيْنَا الإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ إِحْسَانًا حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا وَحَمْلُه وَفِصَالُه ثَلاَثُونَ شَهْرًا". ۱

" مونږ انسان ته حکم کړی دی، چې له خپل مور او پلار سره ښېګړه وکړي؛ مور يې په کړاو په خېټه کې بار کړی ؤ او په سختۍ يې وزېږاوه. او په خېټه کې ساتل او له تي نه غوڅول يې په دېرشو مياشتو کې وو".

د تي ورکولو موده پوره دوه کاله ده او دامیدوارۍ لږ تر لږه هغه موده، چې زېږېدلی بچی پکې ژوندی پاتې کېدی شي، شپږ مياشتې ده، نو دواړه ځکه دېرش مياشتې وګڼل شوې.

د مور او پلار د احترام په هکله په يو بل حديث کې داسې راغلي دي:

عن أبی هريرة قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم:

"رغم أنفه رغم أنفه رغم أنفه" قيل: من يارسول الله؟ قال: "من أدرك والديه عندالكبر أحدهما أو كلاهما ثم لم يدخل الجنة". ۲

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "پوزه دې يې خړه شي، پوزه دې يې خړه شي، پوزه دې يې خړه شي" چا ورته وويل: ای د الله

[1]- سورة الاحقاف: ۱۵.

[2]- رواه مسلم.

پېغمبره! د چا؟ هغه وفرمايل: "چا چې له خپل مور او پلار نه يو يا دواړه په بوډاتوب کې وموندل او جنت ته داخل نه شو".

مطلب دا چې مسلمان لپاره د مور او پلار خدمت او ورسره ښېګړه کول جنت ته د ننوتو لامل دی او دا کار نه کول له جنت نه د محروميت لامل دی.

په بل حديث کې داسې راځي:

عن عبدالله بن عمرو قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "من الكبائر شتم الرجل والديه". قالوا: يارسول الله! وهل يشتم الرجل والديه؟ قال: "نعم يسب أبا الرجل فيسب أباه ويسب أمه فيسب أمه".[1]

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " له لويو ګناهونو څخه دا هم ده، چې يو سړی خپل مور او پلار ته کنځل وکړي" هغوی وويل: ای د الله پيغمبره! آيا خپل مور او پلار ته هم څوک کنځل کوي؟ هغه وفرمايل: "هو، د يو چا پلار ته کنځل کوي، نو هغه د ده پلار ته کنځل کوي او مور ته يې کنځل کوي، نو هغه دده مور ته کنځل کوي".

په اسلام کې د مور او پلار حقوقو ته زياته پاملرنه شوې ده؛ خو په ځانګړې توګه د مورحق د پلار له حق درې چنده زيات دی.

په يو حديث کې داسې راځي:

---

[1]- رواه البخارى ومسلم.

**عن أبي هريرة قال: قال رجل: يارسول الله! من أحق بحسن صحابتى؟ قال: "أمك" قال: ثم من؟ قال: "أمك" قال: ثم من؟ قال: "أمك" قال: ثم من؟ قال: "أبوك".** ۱

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: يو سړي وويل: ای د الله پيغمبره! زما د ښه سلوک او ښېګړې زيات حقدار څوک دی؟ هغه وفرمايل: "ستا مور" هغه وويل: بياڅوک دی؟ هغه وفرمايل: "ستا مور" هغه وويل: بيا څوک دی؟ هغه وفرمايل: "ستا مور" هغه وويل: بيا څوک دی؟ هغه وفرمايل: "ستا پلار".

له مشرک او کافر مور او پلار سره هم ښېګړه کول مشروع دي.

په يو حديث کې داسې راځي:

**عن أسماء بنت أبى بكر قالت : قدمتْ على أمى وهى مشركة فى عهد قريش فقلت: يارسول الله! إن أمى قدمت عليّ وهى راغبة أفأ صلها؟ قال: "نعم صليها".** ۲

له اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې زما مور ماکره راغله او هغه مشرکه او دقريشو په تړون کې وه؛ ما وويل: ای د الله پيغمبره! زما مور ماکره راغلې ده او هغه له اسلام نه سر غړوونکې ده، نو آيا زه ورسره ښېګړه وکړم؟ هغه وفرمايل: "هو، ښېګړه ورسره وکړه".

---

[1] - رواه البخارى ومسلم.
[2] - رواه البخارى ومسلم.

په يو بل حديث کې د ښو نصيحتونو په ترڅ کې داسې راځي:

عن المغيرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "إن الله حرم عليكم عقوق الأمهات و وأدالبنات و منع وهات وكره لكم قيل وقال وكثرة السؤال و إضاعة المال". ۱

له مغيره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "الله تعالى په تاسو له ميندو نه سرغړونه، د لوڼو ژوندي ښخول او منع کول او راکړه حرام کړي دي.او ويل شوي دي، ويلي يې دي، ډېر سوال کول او د مال بربادول يې درته بدګڼلي دي".

له منع کولو نه مراد دا دی، چې هر څه او معمولي ښېګړې هم له نورو منع کوې او هيڅ ته دې خير نه رسېږي. او له (راکړه) نه مراد دا دی، چې تل يې له نورو نه غواړې، هر څه او هر چاته تمه کوې او د هرشي په لاسته راوړوکې حريص يې.

او له ډېر سوال نه هم دا مراد دی، چې هر څه او هروخت او له هرچا يې غواړې او هر چاته خوله وازوې. يا ډېرې او بې ځايه پوښتنې کوې.

او د مال ضياع دا ده، چې اسراف پکې کوې، يا يې په بې ځايه او بې ګټې کارونو کې لګوې او څه چې ګورې هغه اخلې، يا يې په بله لاره بربادوې او ضائع کوې.

---

۱- رواه البخاري و مسلم والدارمي و احمد.

د مور احترام دومره زيات دی، چې د رضاعي مور چې په وړوکتوب کې يې د هغې شېدې رودلې وي، هم احترام په کار دی.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبى الطفيل قال: رأيت النبى صلى الله عليه وسلم يقسم لحما بالجِعرّانة إذ أقبلت امرأة حتى دنت إلى النبى صلى الله عليه وسلم فبسط لها رداءه، فجلست عليه فقلت: من هى؟ فقالوا: هى أمه التي أرضعته". [۱]

له ابو طفيل رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: ما پېغمبر صلی الله عليه وسلم ليدلی ؤ، چې په (جِعرّانه) ځای کې يې غوښه وېشله؛ چې ګورو يوه ښځه راغله تر دې، چې پېغمبر صلی الله عليه وسلم ته ورنږدې شوه، نو هغه ورته خپل څادر خپور کړ او هغه پرې کېناسته. ما وويل: داڅوک ده؟ صحابه ؤ راته وويل: دا درسول الله صلی الله عليه وسلم هغه رضاعي مور ده چې تی يې ورکړی دی".

مور درې ځله له پلار نه زياته داحسان او ښېګړې وړ ده؛خو طاعت او خبره منل د پلار زيات دي. د پلار د طاعت په هکله داسې حديث راغلی دی:

عن ابن عمر قال: كانت تحتى إمرأة أحبها وكان عمر يكرهها فقال لى: طلقها و أبيت فأتى عمر رسول الله صلى الله عليه

---

[۱]- رواه ابوداود.

وسلم فذكر ذلك له؛ فقال لي رسول الله صلى الله عليه وسلم: طلقها". ۱

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې زما يوه ښځه وه، چې خوښه مې وه او (زما د پلار) عمر رضي الله عنه خوښه نه وه، نو ماته يې وويل، چې طلاقه يې کړه او ما انکار وکړ، نو عمر رسول الله صلى الله عليه وسلم ته لاړ او دا خبره يې ورته ياده کړه. رسول الله صلى الله عليه وسلم ماته وويل: "طلاقه يې کړه". په نورو رواياتوکې راځي،چې هغه خپله ښځه طلاقه کړه.

له دې نه دا څرګنده شوه، چې د پلار ډېر زيات حق دی او اولادونه بايد د پلار اطاعت وکړي. تر دې چې که کوم پلار خپل بچي له يوه مباح کار نه هم منع کوي، خصوصا بالغان، نو بايد ويې نه کړي او په دغه وخت کې دغه مباح کار هم حرامېږي ځکه چې دپلار اطاعت فرض دی.

د پلار د احترام لپاره بايد اولادونه د هغه له دوستانو سره دوستي وپالي او ښېګړه ورسره وکړي؛ خو که د پلار دوستان يې بدعمله او بدکاره وو، نو بيا ورسره دوستي سمه نه ده.

په يو حديث کې داسې راځي:

عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "إن من أبرالبر صلة الرجل أهل وُدأبيه بعد أن يولي". ۲

---

[1] - رواه الترمذي و ابوداود.
[2] - رواه مسلم.

له عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " له ډېرې ښې نېکۍ نه دا هم ده، چې يو سړی د پلار له مړينې وروسته د هغه له دوستانو سره دوستي وپالي".

په بل حديث کې د پلار حق داسې راغلی دی:

عن عبدالله بن عمرو قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "رضى الرب فى رضى الوالد وسخط الرب فى سخط الوالد"[1]

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " د الله رضا د پلار په رضا کې ده او د الله غوسه د پلار په غوسې کې ده".

په بل حديث کې پلار د جنت منځنی ورګڼل شوی دی:

عن أبى الدرداء قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "الوالد أوسط أبواب الجنة فإن شئت فحافظ على الباب أوضيع".[2]

له ابو درداء رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه اوريدلي دي، چې فرمايل يې: "پلار د جنت منځنی ور دی، نو خوښه دې، چې دا ور ساتې او که ضايع کوې يې".

---

[1]- رواه الترمذی.
[2]- رواه الترمذی وابن ماجه.

د مور او پلار له مړينې وروسته هم له هغوی سره ښېګړه کېدی شي؛ د دې ښېګړې په هکله داسې حديث راغلی دی:

عن أبی أسید الساعدی قال: بینا نحن عند رسول الله صلی الله علیه وسلم إذ جاءه رجل من بنی سلمة فقال: یارسول الله! هل بقی من بر أبوی شئ أبرهما به بعد موتهما؟ قال: " نعم، الصلاةعلیهما ، والإستغفار لهما ، و إنفاذ عهدهما من بعدهما ، وصلة الرحم التی لا توصل إلا بهما ، و إکرام صدیقهما ".[۱]

له ابو اُسيد ساعدي رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: مونږ يو وخت له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره وو، چې د بني سلمه قبيلې يو سړی ورته راغی او ويې ويل: ای د الله پېغمبره! آيا زما د مور او پلار له احسانه څه پاتې دي، چې دهغوی له مړينې وروسته يې زه ورسره وکړم! هغه وفرمايل: "هو، دواړو ته دعاء کول، هغوی ته ښښنه غوښتل، د هغوی له مړينې وروسته دهغوی تړونونه عملي کول، دهغوی هغه خپلوي پالل، چې يواځې دهغوی له کبله پالل کېږي. او د هغوی د دوستانو عزت کول".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبی بکرة قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : " کل الذنوب یغفرالله منها ماشاء إلا عقوق الوالدین، فإنه یعجل لصاحبه فی الحیاة قبل الممات".[۲]

[۱]- رواه ابوداود وابن ماجه.
[۲]- رواه الحاكم والبيهقى فى شعب الإيمان والخرائطي في مساوئ الأخلاق.

له ابوبکره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: "تولې ګناوې داسې دي، چې که الله يې وغواړي، نو څومره يې چې ترې خوښه شي ببښي يې؛ خو له مور او پلار نه سرغړونه او نافرماني داسې ده، چې سرغړوونکي ته له مړينې مخکې په ژوند کې سزا را مخکې کېږي".

## له خپلوانو او ګاونډيانو سره ښېګړه

اسلام د ګاونډي حق ته زياته پاملرنه کوي او مسلمانانو ته حکم کوي، چې له خپلو ګاونډيانو سره ښه سلوک او هر ډول ښېګړه وکړي او هيڅ ډول کړاو او زيان ورونه رسوي.

الله تعالی فرمايي:

"وَاعْبُدُواْ اللہ وَلاَ تُشْرِكُواْ بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالجَنبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ"[1]

"د الله عبادت وکړئ، هيڅ شی ورسره مه شريکوئ او له مور او پلار، خپلوانو، يتيمانو، بې وزلو، خپلوانو ګاونډيانو، د خوا ګاونډيانو، د څنګ ملګري، مسافر او غلامانو وينځو سره ښېګړه وکړئ".

---

[1]- سورة النساء: ٣٦.

اسلام د خپلوۍ په پاللو او له خپلوانو سره په ښېګړې کولو امر کوي او د خپلوۍ پاللو رغبت ورکوي. لکه چې په حديث کې داسې راځي:

عن أنس قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "من أحب أن يبسط له فى رزقه و ينسأله فى أثره فليصل رحمه".

له انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "څوک چې دا خوښوي، چې روزي يې پراخه شي او نښې يې پاتې شي، نو خپلوي دې وپالي".

په بل حديث کې د خپلوۍ پالل داسې راغلي دي:

عن أبى هريرة قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "الرحم شجنة من الرحمن فقال الله: "من وصلك وصلته ومن قطعك قطعته".[1]

له ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "خپلوي د رحمن ذات له نومه اخيستل شوې ده؛ الله تعالی ورته وفرمايل: "چاچې ته پيوسته کړې؛ زه به يې (له خپل رحمت سره) پيوسته کړم او چا چې پرې کړې؛ زه به يې پرې کړم".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن جبير بن مطعم قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لايدخل الجنة قاطع".[2]

---

[1]- رواه البخارى.
[2]- رواه البخار ومسلم.

له جبير بن مطعم رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: " دخپلوۍ پرې کوونکی جنت ته نه ننوځي".

دخپلوۍ پالل: له خپلوانو سره ښېګړه کول، د ناروغ پوښتنه، راشه درشه، مړی ژوندی، خواخوږي ، لاسنيوی او هر ډول احسان کول دي. يواځې بدل خلاصول پالل نه دي؛ بلکه له نېکانو خپلوانو سره بې بدله نېکي او ښېګړه په کار ده.

په حديث کې داسې راځي:

عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "ليس الواصل بالمكافئ ولكن الواصل الذى إذا قطعت رحمه وصلها". [1]

له عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي:" د بدلې ورکوونکی د خپلوۍ پالونکی نه دی؛ بلکه د خپلوۍ پالونکی هغه څوک دی، چې کله څوک دهغه خپلوي پرې کړي، نو هغه يې پيوسته کړي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن ابى هريرة أن رجلا قال: يارسول الله! إن لي قرابة أصلهم و يقطعونى وأحسن إليهم ويسيئون إلى وأحلم عنهم و يجهلون على؛ فقال : "لئن كنت كما قلت فكأنما تُسفّهُم المَل ولا يزال معك من الله ظهير عليهم ما دمت على ذلك". [2]

[1]- رواه البخارى.
[2]- رواه مسلم.

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی، چې يو سړي وويل: ای د الله پېغمبره! زما خپلوان دي، زه ورسره خپلوي پالم او هغوی يې راسره پرې کوي، زه ورسره ښېګړه کوم او هغوی راسره بد کوي، زه ورته صبر او زغم کوم او هغوی په ماناغېږي کوي. هغه ورته وفرمايل: " که ته ريښتيا داسې يې، لکه چې و دې ويل، نو دا داسې ده؛ لکه ته چې هغوی ته په خولو کې توده ايره اچوې. تر څو چې ته په همدې حال کې يې، نو له تاسره تل د الله له پلوه د هغوی په خلاف يو مرستيال مَلَک (پرښته وي)".

ګاونډيانو ته د پاملرنې په هکله په حديث کې داسې راغلي دي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "والله لا يؤمن والله لا يؤمن والله لايؤمن" قيل من يارسول الله! قال: "الذى لا يؤمن جاره بوائقه".۱

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " په الله قسم دی، چې مؤمن کېدی نه شي، په الله قسم دی، چې مؤمن کېدی نه شي، په الله قسم دی، چې مـؤمن کېـدی نه شي". چا ورته وويل: ای د الله پېغمبره! دا څوک دی؟ هغه وفرمايل: " هغه څوک، چې ګاونډی يې له زيانونوڅخه نه په امن کېږي".

په بل حديث کې داسې راځي:

[1]- رواه البخارى ومسلم.

عن أنس قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "لا يدخل الجنة من لا يؤمن جاره بوائقه". ۱

له انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "هغه څوک جنت ته نه ننوځي، چې ګاونډی يې له زيانونو څخه نه په امن کېږي".

په بل حديث کې د ګاونډي د حقوقو ساتلو او د زياتې پاملرنې په هکله داسې راځي:

عن عائشة عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "مازال جبريل يوصيني بالجار حتى ظننت أنه سيورثه". ۲

له عائشې رضى الله عنها نه روايت دی هغه له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې ويې فرمايل: "جبرائيل به ماته تل د ګاونډي په هکله نصيحت کاوه تر دې، چې ما ګمان وکړ؛ کېدی شي، چې ميراث ورته ورکړي".

په بل حديث کې د ملګري او ګاونډي سره د ښېګڼې او ښه سلوک په هکله داسې راځي:

عن عبدالله بن عمرو قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "خيرالأصحاب عندالله خيرهم لصاحبه و خيرالجيران عندالله خيرهم لجاره". ۳

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " له الله سره تر

[1]- رواه مسلم.
[2]- رواه البخارى ومسلم.
[3]- رواه الترمذي والدارمي.

ټولو ښه ملګرى هغه دى، چې د خپل ملګري لپاره ښه وي او له الله سره تر ټولو ښه ګاونډى هغه دى، چې د خپل ګاونډي لپاره ښه وي".

په بل حديث کې ګاونډيانو ته داسې اهميت ورکول کېږي:

عن ابن مسعود قال: قال رجل للنبى صلى الله عليه وسلم: يارسول الله!كيف لى أن أعلم إذا أحسنت و إذا أسات؟ فقال النبى صلى الله عليه وسلم : " إذا سمعت جيرانك يقولون: قد أحسنت، فقد أحسنت و إذا سمعتهم يقولون: قد أساءت فقد أساءت".[۱]

له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې يو سړي پېغمبر صلى الله عليه وسلم ته وويل: اى د الله پېغمبره! زه چې کله نېکي يا بدي وکړم، نو څرنګه به پوه شم، چې دا نيکي يا بدي ده؟ پېغمبر صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل :

" کله چې تا له خپلو ګاونډيانو نه واورېدل، چې نېکي دې وکړه، نو تا بې شکه نېکي کړې ده او چې ورڅخه دې واورېدل، چې تابدي کړې ده، نو بې شکه دې بدي کړې ده".

د ريښتيا ؤ، امانت او له ګاونډيانو سره د ښېګړې په هکله په بل حديث کې داسې راغلي دي :

عن عبدالرحمن بن أبي قراد قال: قال النبى صلى الله عليه وسلم: "من سره أن يحب الله ورسوله أو يحبه الله و رسوله فليصدق حديثه إذا حدث وليؤد أمانته إذا ائتمن وليحسن جوار من جاوره".[۲]

---

[۱]- رواه ابن ماجه.

[۲]- رواه البيهقى فى شعب الإيمان وأبونعيم في معرفة الصحابة.

له عبدالرحمن بن ابي قراد رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې پېغمبر صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "څوک چې په دې خوشحالېږي، چې له الله او د هغه له پېغمبر سره محبت وکړي، يا الله او د هغه پېغمبر ورسره محبت وکړي، نو کله يې چې خبرې کولې؛ رېښتيا دې ووايي، کله چې چا ورسره امانت کېښود؛ خپل امانت دې ور وسپاري او څوک يې چې ګاونډي ؤ؛ له هغه سره دې ښه ګاونډيتوب وکړي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن ابن عباس قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "ليس المؤمن بالذى يشبع وجاره جائع إلى جنبه".[1]

له عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: "هغه څوک مؤمن نه دی، چې هغه مړېږي او خواته يې ګاونډی وږی وي".

سبحان الله! وګورئ د اسلام اجتماعيت او ټولنيزو احکامو ته چې څومره د ښېګړې او رغونې دين دی!!!.

په بل حديث کې د بد ګاونډيتوب په هکله داسې راځي:

عن أبي هريرة قال: قال رجل: يارسول الله! إن فلانة تذكر من كثرة صلاتها و صيامها وصدقتها غيرأنها تؤذى جيرانها بلسانها قال: "هى فى النار" قال: يارسول الله! إن فلانة تذكر من قلة صيامها

[1] - رواه البيهقى فى شعب الإيمان.

و صدقتها وصلاتها و إنها تصدق بالأثوار من الأقط ولا تؤذى بلسانها جيرانها قال: "هي فى الجنة". ۱

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: يو سړي وويل: ای د الله پېغمبره! فلانۍ ښځه په ډېرو نفلي لمونځونو كولو، روژو نيولو او خيراتونو كولو يادېږي؛ خو خپلو ګاونډيانو ته په خپلې ژبې كړاو رسوي، هغه وفرمايل: " هغه به په اور كې وي" هغه سړي بيا وويل: ای د الله پېغمبره ! فلانۍ ښځه نفلي روژې، نفلي خيراتونه او نفلي لمونځونه لږ كوي اود پنير ټه ټوټې خيراتوي؛ خو خپلو ګاونډيانو ته په خپلې ژبې هيڅ كړاو نه رسوي، هغه وفرمايل: " هغه به په جنت كې وي".

په بل حديث كې داسې راغلي:

عن ابن مسعود قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " إن الله تعالى قسم بينكم أخلاقكم كما قسم بينكم أرزاقكم؛ إن الله تعالى يعطى الدنيا من يحب ومن لايحب و لايعطى الدين إلا من أحب فمن أعطاه الله الدين فقد أحبه والذي نفسى بيده لا يسلم عبد حتى يسلم قلبه ولسانه و لايؤمن حتى يأمن جاره بوائقه". ۲

له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " لكه څرنګه چې الله تعالى ستاسو تر منځ ستاسو روزي وېشلې ده؛ همداسې يې ستاسو تر منځ ستاسو خويونه او اخلاق هم وېشلي دي؛ د الله تعالى

[1]- راوه احمد والبيهقى.
[2]- رواه البيهقى فى شعب الايمان.

چې څوک خوښ وي او که نه؛ دنيا ورکوي ، او دين يوائې هغه چاته ورکوي، چې خوښ يې وي، نو چاته چې الله تعالى دين ورکړی وي، هغه يې خوښ دی. زه په هغه ذات قسم کوم، چې زما ځان د هغه په لاس کې دی، چې يو بنده تر هغه مسلمان کېدی نه شي، تر څو چې يې زړه او ژبه مسلمان شي او تر هغه مؤمن کېدی نه شي، تر څو يې چې ګوانډيان له زيانونوڅخه په امن شي".

د ګاونډي له حقوقو داهم دی، چې که ستا په دېوال کې د ګاونډي دکور لورته د اړتيا په وخت کې کوم مېخ ياموګی ټک وهي، نو مه يې منع کوه.

په حديث کې داسې راځي :

عن أبى هريرة أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "لا يمنع جار جاره أن يغرز خشبة فى جداره".[1]

له ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "يو ګاونډي دې خپل بل ګاونډی له دې څخه نه منع کوي، چې د ده په دېوال کې کوم لرګی ښخ کړي".

خو که دا جوته وه، چې ګاونډي هسې بې ځايه او بې ضرورته د ځان سولولو او ضرر رسولو لپاره دا کار کوي، نو بيا يې منع کولی شي. الله تعالى د دواړو په نيت ښه خبر دی، دواړه سره ګاونډيان دي او دواړو ته اسلام ددې توصيه کوي، چې يو د بل خيال به ساتي، يو بل ته به زيان نه رسوي او په خپلو کې به د

---

[1]- راوه البخارى.

ښېګړې، ورورولۍ او ښه ګاونډيتوب ژوند کوي، د هر چا نيت چې بل ته سم نه ؤ، نو هغه مجرم او ګناهګار دی.
په يو حديث کې له ګاونډيانو سره د ښېګړې په هکله داسې راځي:
عن أبي ذر قال: قال رسول الله صلى الله عليه و سلم: "لا يحقرن أحدكم شيئا من المعروف وإن لم يجد فليلق أخاه بوجه طلق وإن اشتريت لحما أو طبخت قدرا فأكثر مرقته وأغرف لجارك منه".[1]
له ابوذر رضی الله عنه نه روايت دی، هغه وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: " ستاسو يو کس دې هيڅ ښېګړه سپکه نه ګڼي؛ که هيڅ يې ونه موندل، نو له خپل ورور سره دې په ورين تندي او خوشحاله مخ مخامخ شي. که غوښه دې واخيسته، يا دې نور څه پاخه کړل،نو ښوروا يې ډېره کړه او خپل ګونډي ته هم ترې څه ورکړه ".

## زغم او تېرېدنه

اسلام مسلمانان زغم او تېرېدنې ته هڅوي او د جنګ جګړو مخه نيسي.
لکه چې د پرهېزګارانو او نېکانو په کره ځانګړتياؤ کې فرمايي:

---

[1] - رواه الترمذي وابن حبان.

"وَسَارِعُواْ إِلَى مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالأَرْضُ أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ الَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي السَّرَّاء وَالضَّرَّاء وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ". ۱

"او د خپل رب له لوري ښښنې او هغه جنت ته بيړه وکړئ، چې پلنوالى يې د آسمانونو اوځمکې په کچ دى او هغو پرهېزګارانو ته تيار شوى دى، چې په خوښيو او کړاوونو کې لګښتونه کوي، د غوسې زغمونکي او له خلکو تېرېدونکي وي. او الله نېکي کوونکي خوښوي".

او خپل پېغمبر ته فرمايي:

"خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِينَ". ۲

"تېرېدنه خپله کړه، په نېکيو امر کوه او له ناپوهانو نه مخ واړوه".

او د مؤمنانو په کره ځانګړتياو کې داهم ګڼل کېږي:

"وَإِذَا مَا غَضِبُوا هُمْ يَغْفِرُونَ". ۳

"((او کله چې په غوسه شي، نو هغوى ښښنه کوي".

مطلب دا چې چاته يې غوسه راغلې وي؛ هغه ته ښښنه کوي.

او فرمايي:

"وَلَمَن صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذَلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ". ۴

---

[1]- سورة آل عمران ۱۳۳- ۱۳٤.
[2]- سورة الاعراف: ۱۹۹.
[3]- سورة الشورى: ۳۷.
[4]- سورة الشورى: ٤۳.

" چا چې صبر وکړ او ښښنه يې وکړه، نو دا بې شکه له پياوړيو کارونو نه دی".

او فرمايي:

"وَإِن تَعْفُوا وَتَصْفَحُوا وَتَغْفِرُوا فَإِنَّ اللهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ". ۱

" او که تېرېدنه وکړئ، مخ واړوئ او ښښنه وکړئ، نو الله بې شکه ډېر ښښونکی او خورا زيات لورونکی دی".

اسلام تل د زغم او تېرېدنې توصيه کوي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبی هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "ليس الشديد بالصرعة إنما الشديد الذي يملك نفسه عندالغضب". ۲

له ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " اتل او غښتلی هغه څوک نه دی، چې خلک څملوي، بلکه اتل هغه څوک دی، چې د غوسې په وخت کې د خپل ځان واک لري".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة أن رجلا قال للنبى صلى الله عليه وسلم : أوصني. قال: "لاتغضب" فردد ذلك مراراً قال: "لاتغضب". ۳

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی، چې يو سړي پيغمبر صلى الله عليه وسلم ته وويل: "ماته څه نصيحت وکړه. هغه

---

[1] - سورة التغابن: ١٤.
[2] - رواه البخاری ومسلم.
[3] - رواه البخاری.

وفرمايل: "غوسه مه کوه" هغه څو ځل په تکرار همدا پوښتنه وکړه؛ رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل: "غوسه مه کوه".

رسول الله صلی الله عليه وسلم دهر چا دحال مناسب ځواب ورکاوه او د هر چا د ناروغۍ موافق علاج يې ورښوده،دغه سړی غوسه ناک ؤ، نو ځکه يې ورته بيا بيا همدا يو ځواب ورکاوه چې"مه په غوسه کېږه".

په بل حديث کې دغضب او غوسې دغندلو او علاج په هکله داسې راغلي دي:

عن عطية بن عروة السعدى قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " إن الغضب من الشيطان و إن الشيطان خلق من النار و إنما يطفأ النار بالماء فاذا غضب أحدكم فليتوضأ".[1]

له عطيه بن عروه سعدي رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "غوسه د شيطان له لوري ده، شيطان له اور څخه پيدا شوی دی او اور په اوبو مري، په تاسو کې چې څوک کله په غوسه شي، نو اودس دې وکړي".

په بل حديث کې د غوسې علاج داسې راپه ګوته شوی دی:

عن أبي ذر أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "إذا غضب أحدكم وهو قائم فليجلس فإن ذهب عنه الغضب وإلا فليضطجع".[2]

---

[1]- رواه ابو داود.

[2]- رواه الترمذی و احمد.

له ابو ذر رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "ستاسو کوم کس چې کله په غوسه شي، نو که ولاړ ؤ کې دې ني؛ که غوسه يې سړه شوه ښه ده که نه، نو اړخ دې ولګوي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم:"ماتجرع عبد أفضل عندالله عزوجل من جرعة غيظ يكظمها ابتغاء وجه الله تعالى".[1]

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "له الله سره يو بنده د غوسې له ګوټ نه ښه ګوټ نه دی کړی، چې د الله تعالی د رضا لپاره غوسه وزغمي".

## اوار مزل او ټيټ غر

اسلام په هر څه کې اعتدال او منځلاري غوره کوي او تل د افراط او تفريط مخه نيسي، تر دې چې په تللو راتللو او په خبرو کولو کې هم په اعتدال امر کوي.

[1]- رواه احمد.

د لقمان په نصيحتونو کې دا هم الله تعالی څرګند کړي دي چې:

"وَاقْصِدْ فِي مَشْيِكَ وَاغْضُضْ مِن صَوْتِكَ إِنَّ أَنكَرَ الأَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِيرِ".[1]

"په تللو کې اعتدال وکړه او غږ دې ښکته کړه؛ په غږونو کې ناکاره غږ بې شکه د خره غږ دی".

معنی دا چې د کلي کور او بازار په عادي مزل او تللو کې اعتدال وکړه، مه د ماشومانو پاپلې کوه، چې ببخي سست پست روان يې لکه تازه چې له نري رنځ يا لويې تبې نه راپاڅېدلی يې او مه بې ضرورته منډې وهه.

همدارنګه رمبارې مه وهه، لکه د خره ينګل، چې بد لګېږي او ناوړه برېښي همدارنګه بې ځايه په لوړ غږ او رمباړو خبرې کول هم بد برېښي.

اسلام انسان ته دعزت او وقار درانده خويونه ور زده کوي ؛ عزتمند ، دروند او معزز شخصيت ورڅخه جوړوي .

او فرمايي:

"وَعِبَادُ الرَّحْمَنِ الَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى الأَرْضِ هَوْنًا وَإِذَا خَاطَبَهُمُ الْجَاهِلُونَ قَالُوا سَلاَمًا".۲

[1]- سورة لقمان: ١٩.
[2]- سورة الفرقان: ٦٣.

" د مهربان ذات بندګان هغه دي، چې په ځمکه اوار ځي او کله چې ناپوهان ورسره خبرې کوي، نو دوی د سلامتيا خبرې ورسره کوي".
معنی دا چې له ناپوهانو سره ځان نه سموي او د هغوی د جاهلانه خبرو ځواب په جاهلانه توګه نه ورکوي، چې شر او جنجال ترې جوړ شي. بلکه په هوښيار ځواب ترې ځان ژغوري.

## د مشورې دين

د اسلام له ښېګړو او محاسنوڅخه يوه دا هم ده، چې په مشورې کولو امر کوي.
الله تعالی خپل پيغمبر ته حکم کوي، چې له صحابه ؤ رضی الله عنهم سره مشوره کوه:
"وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ".[1]
" له دوی سره مشوره وکړه او کله دې، چې ټينګه اراده وکړه نو په الله ځان وسپاره؛ الله بې شکه په هغه ځان سپارونکي خوښوي".
همدارنګه د مؤمنانو د کره ځانګړتياو په ترڅ کې فرمايي:
"وَأَمْرُهُمْ شُورَى بَيْنَهُمْ".[2]
" دمؤمنانو کار په خپلو منځو کې مشوره کول دي".

---

[1]- سورة آل عمران: ۱۵۹.
[2]- سورة الشورى: ۳۸.

## د روغې جوړې او سولې دين

اسلام د خلکو تر منځ سوله او امنيت غواړي، د شخړو او اختلاف په وخت کې د هغوی تر منځ روغې جوړې ته ترغيب ورکوي او د اصلاح لورته يې هڅوي.

الله سبحانه وتعالی فرمايي:

"وَأَصْلِحُواْ ذَاتَ بِيْنِكُمْ".[۱]

" په خپلو منځو کې روغه جوړه وکړئ".

او فرمايي:

"وَلاَ تَجْعَلُواْ اللّهَ عُرْضَةً لِّأَيْمَانِكُمْ أَن تَبَرُّواْ وَتَتَّقُواْ وَتُصْلِحُواْ بَيْنَ النَّاسِ".[۲]

" د دې لپاره الله خپلو قسمونو لپاره ډال مه جوړ وئ، چې ښېګړه ونه کړئ، ځانونه ونه ژغورئ او دخلکو تر منځ روغه جوړه ونه کړئ".

او الله تعالی فرمايي:

"لاَّ خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِّن نَّجْوَاهُمْ إِلاَّ مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلاَحٍ بَيْنَ النَّاسِ وَمَن يَفْعَلْ ذَلِكَ ابْتَغَاء مَرْضَاتِ اللّهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا".[۳]

---

[۱]- سورة الانفال: ۱.
[۲]- سورة البقرة: ۲۲٤.
[۳]- سورة النساء: ۱۱٤.

" د دوی په ډېرو جرګو کې خير نشته، يوائې په هغې جرګې کې خير دی، چې چاپکې په خيرات کولو يا ښېګړې کولو او يا د خلکو په منځ کې د روغې جوړې پرېکړه وکړه. او چا چې د الله د رضا لپاره دا کار وکړ، نو هغه ته به ډېر زر لو يه بدله ورکړو".

مسلمانان بايد په خپلو منځو کې تل د اصلاح او رغونې کوښښونه او هڅې او د فساد او ورانکارۍ مخنيوی وکړي. په يو حديث کې داسې راځي:

عن أبى الدرداء قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " ألا أخبركم بأفضل من درجة الصيام والصدقة والصلاة؟" قال: قلنا: بلى. قال: "إصلاح ذات البين، و فساد ذات البين هى الحالقة".[۱]

له ابودرداء رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " آيا زه تاسو ته يو داسې کار در ونه ښيم، چې له نفلي روژي، خيرات او لمانځه نه هم ډېر غوره دی؟ " هغه وايي: مونږ ورته وويل: ولې نه. هغه وفرمايل: "په خپلو منځو کې اصلاح او روغه جوړه کول دي. خو په خپلو منځو کې فساد پيدا کول د نېکيو کلوونکي (خريونکي او له منځه وړونکي) دي".

په بل حديث کې له حسد نه داسې منع شوې ده:

عن أبي هريرة عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "إياكم والحسد فإن الحسد يأكل الحسنات كما تأكل النار الحطب".[۲]

---

[۱]- رواه الترمذی و ابوداود.

[۲]- رواه ابو داود.

له ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پېغمبر صلی الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې ويې فرمايل: " تاسو له کينې کولو څخه ځانونه وژغورئ؛ ځکه کينه نېکۍ داسې خوري لکه اور چې لرګي خوري".

په اسلام کې دروغ ويل ډېره لويه ګناه ده؛ خو د دوه مخالفو طرفونو تر منځ په سولې کولو کې که يو طرف هغه بل لورته کنځلې او سپکې سپورې ووايي، بيا ددې ريښتيا نقلول او مخالف ته رسول ناروا دي. بلکه که د خير کار لپاره او د دواړو د روغې جوړې لپاره د دغو سپکو سپورو او کنځلو د نقلولو په ځای هغه مخالف طرف ته ووايې، چې ستا هغه مخالف ستا په هکله ښې خبرې وکړې او ته يې په ښو ياد کړې، نو دا دروغ ثواب او روا دي.

په يو حديث کې داسې راځي:

عن أم كلثوم قالت: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "ليس الكذاب الذی يصلح بين الناس و يقول خيرا وينمی خيرا".[1]

له ام کلثوم رضی الله عنها نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " هغه څوک دروغجن نه دی، چې د خلکو په منځ کې سوله او د خير خبره کوي او خير زياتوي".

---

[1]- رواه البخاری ومسلم.

# ښه خوی

اسلام ټول د ښه خوی او ښو اخلاقو دين دی او ښه اخلاق د انساني ټولنې د خوشحاله ژوند لپاره ښه وسيله ده.

د ښه سلوک او ښو اخلاقو په هکله په حديث کې داسې راځي:

عن رجل من مزينة قال: قالوا: يارسول الله! ما خير ما أعطى الإنسان؟ قال: " الخلق الحسن". [1]

د مزينه قبيلې له يو سړي نه روايت دی هغه وايي: صحابه ؤ وويل: ای د الله پېغمبره! يو انسان ته تر ټولو ښه کوم شی ورکول شوی دی؟ هغه وفرمايل: "ښه اخلاق".

همدارنګه د بد اخلاقۍ او بد سلوکۍ د غندنې په هکله په حديث کې داسې راځي:

عن حارثة بن وهب قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "لايدخل الجنة الجواظ ولاالجعظرى". [2]

له حارثه بن وهب رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "کبرجن بخيل بداخلاقه بد ژبی او سخت زړی لاپو خېټور جنت ته نه ننوځي".

په بل حديث کې داسې راځي :

---

[1]- رواه البيهقى فى شعب الايمان.

[2]- رواه ابوداود و البيهقى فى شعب الايمان.

عن أبى الدرداء عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: " إن أثقل شئ يوضع فى ميزان المؤمن يوم القيامة خلق حسن و إن الله يبغض الفاحش البذئ". ١

له ابو درداء رضي الله عنه نه روايت دى هغه له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي، چې هغه وفرمايل: " د قيامت په ورځ چې د مؤمن د نېكيو په تله كې تر ټولو درووند ايښودل كېږي؛ هغه ښه اخلاق دي او بې شرم او بد اخلاقه د الله بد راځي".

په بل روايت كې دښو اخلاقو په فضيلت كې داسې راځي:

عن عائشة قالت: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "إن المؤمن ليدرك بحسن خلقه درجة قائم الليل و صائم النهار". ١

له عائشې رضى الله عنها نه روايت دى هغه وايي: ماله رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې ويې فرمايل: "مؤمن په ښو اخلاقو دهغه چا درجه حاصلوي، چې د شپې په لمونځونو ولاړ وي او د ورځې روژې نيسي".

په بل حديث كې داسې راځي:

عن أبى هريرة قال: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "بعثت لأتمم حسن الأخلاق". ٢

[1] - رواه الترمذى وابوداود.
٢- رواه مالك و احمد.

له ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " زه د دې لپاره رالېږل شوی يم، چې ښه خويونه بشپړ کړم".

په بل روايت کې د ښو اخلاقو په هکله داسې راځي:

عن معاذ قال: كان آخر ماوصاني به رسول الله صلى الله عليه وسلم حين وضعت رجلي فى الغرز أن قال : "يا معاذ! أحسن خلقك للناس".[1]

له معاذ رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: ـ يمن ته د تګ په وخت کې ـ آخري وصيت ماته رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه وخت وکړ، کله مې چې د اوښ په رکاب کې پښه کېښوده، نو ويې فرمايل: "ای معاذه! خپل اخلاق دې د خلکو لپاره ښه کړه".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبي ذر قال : قال لي رسول الله صلى الله عليه وسلم:
"إتق الله حيث ما كنت وأتبع السيئة الحسنة تمحها وخالق الناس بخلق حسن".[2]

له ابو ذر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې ماته رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " په هر ځای کې چې وې؛ الله نهووېرېږه او ګناه پسې نېکي وکړه، نو له منځه به يې يوسي او له خلکو سره په ښو اخلاقو او سېږه؛.

---

۱ـ روا ه مالك.

[2]ـ رواه الترمذی و احمد والدارمي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم به الله تعالى نه د ښو اخلاقو غوښتنه داسې کوله:

عن عائشة قالت: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "اللهم حسنت خَلْقِيْ فأحسن خُلُقِيْ". ۱

له عائشې رضی الله عنها نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به داسې ويل: "ای الله! تا زما جوړښت ښکلی کړی دی، نو زما خوی او اخلاق هم ښکلي کړه".

په بل حديث کې د ښو اخلاقو فضيلت داسې راغلی دی:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " أكمل المؤمنين إيمانا أحسنهم خلقا". ۲

له ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "په مؤمنانو کې د ډېر بشپړ إيمان والا هغه څوک دی، چې د هغه اخلاق ډېر ښه وي".

د تدبير، پرهېزګارۍ، چاته د زيان نه رسولو او د ښه خوی په هکله داسې حديث راغلی دی:

عن أبي ذر قال: قال لی رسول الله صلى الله عليه وسلم : "يا أباذر! لا عقل كالتدبير ولا ورع كالكف ولا حسب كحسن الخلق". ۳

له ابو ذر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې ماته رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " ای ابو ذره! له تدبير نيولو

---

[1]- رواه احمد.
[2]- رواه ابوداود والدارمي.
[3]- رواه البيهقی فی شعب الايمان.

نه ښه عقل نشته، خلکو ته له زيان رسولو څخه له ځان ژغورلو نه ښه پرهېزګاري نشته او له ښو اخلاقو نه ښه شهرت نشته".

د ښو اخلاقو د ستاينې او د بدو اخلاقو د غندنې په هکله بل حديث داسې راغلی دی:

عن جابر أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: " إن أحبكم و أقربكم مني يوم القيامة أحاسنكم أخلاقا وإن أبغضكم إلى و أبعدكم منى مساويكم أخلاقا الثرثارون المتشدقون المتفيهقون". [۱]

له جابر رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "د قيامت په ورځ په تاسو کې په ماډېر ګران او ماته ډېر نږدې هغه څوک دی، چې د هغه اخلاق ډېر ښه وي. او په تاسو کې چې زما ډېر بد راځي او له ما ډېر لرې دي؛ هغه هغه خلک دي، چې بد اخلاقه وي، بې باکه او کاواکه وي، بد ژبي او کبرجن وي".

اسلام ټول د ښېګړو دين دی او په ټولو خوښويونو امر کوي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

"بعثت لأتمم مكارم الأخلاق". [۲]

"زه د دې لپاره لېږل شوی يم، چې ښه خويونه بشپړ کړم".

[۱]- رواه الترمذي والبيهقى عن ابى ثعلبة الخشني .
[۲]- رواه البيهقى.

# په ښېګړو د بديو مخنيوى

اسلام د ښېګړو دين دى او تل په نېکيو او د ښېګړو په کولو امر کوي. په قرآن کريم کې له ايمان سره ځاى په ځاى عمل صالح (نېک عمل) ياد شوى دى. همدارنګه الله تعالى امر کوي، چې په ښېګړو او نېکيو د بديو مخنيوى وکړئ. لکه چې فرمايي:

"وَالَّذِينَ صَبَرُواْ ابْتِغَاء وَجْهِ رَبِهِمْ وَأَقَامُواْ الصَّلاَةَ وَأَنفَقُواْ مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلاَنِيَةً وَيَدْرَؤُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ أُوْلَئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ".[1]

" هغه خلک چې د خپل رب دمخ لټولو لپاره يې صبر کړى دى، کره پوره لمونځونه يې کړي دي، مونږ چې کوم مال ورکړى دى له هغه يې په پټه اوښکاره لګښت کړى دى او په نيکۍ د بدۍ مخنيوى کوي؛ دوى لپاره د ښو پايلو کور دى".

اوفرمايي:

"ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ السَّيِّئَةَ نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَصِفُونَ".[2]

"د بدۍ مخنيوى په هغه لار وکړه، چې ډېره ښه وي، دوى چې څه بيانوي؛ مونږ پرې ډېر ښه پوه يو".

او فرمايي:

"وَعِبَادُ الرَّحْمَنِ الَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى الْأَرْضِ هَوْنًا وَإِذَا خَاطَبَهُمُ الْجَاهِلُونَ قَالُوا سَلَامًا".[1]

---

[1]- سورة الرعد: ٢٢.
[2]- سورة المؤمنون: ٩٦.

" د رحمٰن ذات بندګان هغه خلک دي، چې په ځمکه بې کبره اوار ځي او کله چې ناپوهان ورسره خبرې کوي، نو دوی د سلامتيا خبرې کوي".

معنى دا چې د جاهلانو دجاهلانه خبرو ځواب په جاهلانه خبرو نه ورکوي بلکه داسې دحکمت خبرې ورته کوي، چې دهغه د جهالت له شره وژغورل شي.

اوفرمايي:

"وَلاَ تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلاَ السَّيِّئَةُ ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ فَإِذَا الَّذِي بَيْنَكَ وَبَيْنه عَدَاوَةٌ كَأَنه وَلِيٌّ حَمِيمٌ". ۲

"نېکي او بدي سره نه برابرېږي؛ په داسې لار دبدۍ مقابله وکړه، چې ډېره ښه وي، نو بيا به هغه څوک، چې ستا او د هغه تر منځ دښمني ده، داسې درسره خوږ شي، ته به وايې، چې هغه ستا ګرم (مخلص) دوست دی".

او فرمايي:

"ادْعُ إِلِى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلهم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ". ۳

"د خپل رب لارته په پوهې او ښو خبرو خلک را وبله او په داسې لار ورسره بحث وکړه، چې ډېره ښه وي".

او فرمايي:

[1]- سورة الفرقان: ٦٣.
[2]- سورة فصلت (حم السجده) : ٣٤.
[3]- سورة النحل: ١٢٥.

"وَقُل لِّعِبَادِي يَقُولُواْ الَّتِي هِيَ أَحْسَنُ إِنَّ الشَّيْطَانَ يَنزَغُ بَيْنَهُمْ إِنَّ الشَّيْطَانَ كَانَ لِلإِنْسَانِ عَدُوًّا مُّبِينًا". [۱]

" زما بندګانوته ووايه: هغه خبره دې وکړي، چې ډېره ښه وي. شيطان بې شکه د دوی تر منځ شيطاني کوي؛ شيطان بې شکه د انسان ښکاره دښمن دی".

## د حق پلوي کول

مسلمان بايد دحق په منلو او ملګرتيا کې له هيچا ونه وېرېږي او تل هغه څه وکړي، چې الله تعالی پرې راضي کېږي او دنامنونکو او سرغړوونکو پروا ونه کړي.

په حديث کې داسې راځي:

عن معاوية أنه كتب إلى عائشة أن اكتبى إلى كتابا توصينى فيه ولا تكثري فكتبت: سلام عليك أما بعد: فإني سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "من التمس رِضَى اللهِ بسخط الناس كفاه الله مؤنة الناس ومن التمس رضى الناس بسخط الله وكله الله إلى الناس والسلام عليك". [۲]

له معاوية رضي الله عنه نه روايت دی؛ هغه عائشې رضی الله عنها ته يو ليک ولېږه، چې ماته داسې يو ليک وليکه، چې څه نصيحت راته پکې وکړې او زياتوه يې مه.

---

[۱] - سورة الاسراء: ۵۳.
[۲] - رواه الترمذی.

هغې ورته وليکل:

" په تادې سلام وي. له سلام وروسته خبره دا ده، چې ماله رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې:

"چا چې د خلکو په ناراضه کولو کې د الله رضا ولټوله، نو دخلکو له کړاوه به ورته الله بس شي. او چا چې د الله په ناراضه کولو کې دخلکو رضا ولټوله، نو الله به يې خلکو ته ور وسپاري" او په تا دې سلام وي".

معنى دا چې داسې ښه کارونه، چې ناوړه خلک يې نه خوښوي او الله تعالى پرې راضي کېږي، او داسې ناوړه کارونه چې الله تعالى پرې ناراضه کېږي او ناوړه خلک يې خوښوي .

اسلام په حق پلوۍ او دحق په ويلو امر کوي؛ تر دې چې د ظالم او جابر پاچا په مخکې د حق خبره کول لوی جهاد ګڼل شوی دی.

په يو حديث کې داسې راځي:

عن أبى سعيد الخدرى أن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "إن من أعظم الجهاد كلمة عدل عند سلطان جائر". [1]

له ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی، چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "د ظالم پاچا په مخکې د حق خبره کول له ډېر لوی جهاد څخه ګڼل کېږي".

---

[1] - رواه أبوداود والترمذي وابن ماجه وأحمد والنسائي والحاكم والبيهقى والطبراني والبزار وأبويعلى والحميدي وربيع بن حبيب في مسنده وعبدالرزاق.

# حياء كول

اسلام له بې شرمۍ او سپكاوي نه منع كوي او په حياء او شرم كولو حكم كوي.

په حديث كې حياء او شرم كول له ايمان نه ګڼل شوي دي او په دې هكله داسې راځي:

عن ابن عمر أن رسول الله صلى الله عليه وسلم مرعلى رجل من الأنصار وهو يعظ أخاه فى الحياء، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "دعه فإن الحياء من الإيمان".۱

له عبدالله بن عمر رضى الله عنهما نه روايت دى، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د انصارو په يو سړي تېرېده او هغه خپل ورورته د شرم په هكله نصيحت كاوه، چې ډېر شرم مه كوه، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: " پرې يې ږده ځكه، چې شرم كول له ايمان څخه دي".

په بل حديث كې داسې راځي:

عن عمران بن حصين قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "الحياء لا يأتى إلا بخير " وفى رواية " الحياء خير كله".۲

له عمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " حياء او شرم كول له

[1]- رواه البخارى ومسلم
[2]- رواه البخارى ومسلم.

خير پرته بل څه نه راوړي" او په يو روايت کې دي، چې " حياء ټول خير دی".

له سپکو ويناو او سپکو کارونو نه ځان ساتلو ته حياء ويل کېږي؛ تر دې، چې ځينې کارونه روا وي؛ خو حياناک انسان يې په کولو شرمېږي، لکه د مشرانو په مخکې بې له اړتيا خبرې کول،په ډېرو خوړو ځان مړول، له چا څه غوښتل او داسې نور.

د حياء په هکله بل حديث داسې راغلی دی:

عن أبی هريرة قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم: "الحياء من الإيمان والإيمان فی الجنة. والبذاء من الجفاء والجفاء فی النار".[1]

له ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " شرم کول له ايمان څخه دي او د ايمان خاوندان به جنت کې وي. او بې شرمي له ګناهونو څخه ده او د ګناهونو خاوندان به په اور کې وي".

## نرمي کول

د اسلام له ښېګړو څخه دا هم ده، چې له مجرمانو پرته له نورو عامو خلکو سره په نرمۍ او اسانۍ کولو حکم کوي او نرمۍ ته ترغيب ورکوي.

[1]- رواه الترمذی واحمد.

د نرمۍ کولو په هکله په يو حديث کې داسې راځي:

عن عائشة أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: " إن الله تعالى رفيق يحب الرفق و يعطى على الرفق ما لايعطى على العنف".[1]

له عائشې رضى الله عنها نه روايت دى، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "الله تعالى نرمي کوونکى دى، نرمي کول خوښوي او په نرمۍ هغه څه ورکوي، چې په سختۍ يې نه ورکوي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن جرير عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: " من يحرم الرفق يحرم الخير".[2]

له جرير رضي الله عنه نه روايت دى هغه له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې ويې فرمايل: "څوک چې له نرمۍ کولو نه بې برخې شو؛ هغه له خير څخه بې برخې شو".

## پاکزړى مؤمن

مؤمن تل پاکزړى وي او چاته نه بې ځايه په زړه کې کينه ساتي، نه بې ځايه په چا بدګمان کوي او نه د درواغو چالاکي، تګي

[1]- رواه مسلم.
[2]- رواه مسلم.

برګي او تېرايستل کوي. نو له همدې امله کله کله دحسن ظن له امله تېر وځي.

په يو حديث کې داسې راځي :

عن أبی هريرة عن النبی صلی الله عليه وسلم قال: " المؤمن غِر کريم والفاجر خِب لئيم".۱

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پېغمبر صلی الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې ويې فرمايل: " مؤمن ښه زړی او عزتمند دی اوبدکاره تېر ايستونکی حرامي وي".

د مؤمن د ښه زړي، او پاکزړي، معنی دا ده، چې کله يې څوک تجربه کړی نه وي او ورته معلوم نه وي، نو د ښه ګمان له کبله پرې تېروځي؛ خو له دې سره سره زيرکه او هوښيار هم دی، چې له يوه ځايه دوه ځل نه غولېږي.

لکه چې په بل حديث کې راځي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي:

"لايلدغ المؤمن من جحر مرتين".۲

"مؤمن له يوې سوړې دوه ځل نه چيچل کېږي".

مطلب دا چې يو ځل يې يو څوک تجربه کړ او پرې وغوليده، نو بيا دوهم ځل پرې نه غولېږي، ځکه؛ يو چا چې يو ځل تېر ايستې او دوهم ځل دې تېر باسي، نو دا بياستاپه حماقت او کم عقلۍ دلالت کوي، نو مؤمن ښه زړی دی؛ خو احمق نه دی.

---

[1]- راوه الترمذی و ابوداود واحمد.

[2]- رواه البخاری ومسلم و ابوداود و ابن ماجة و احمد والدارمي والبيهقی والطبراني.

# ټولنيز مؤمن

اسلام غواړي، چې مؤمن دې ټولنيز وي، په خلکو کې دې رېښې ولري او تل دې د رغونې، اصلاح او سمون هڅې وکړي، په اسلام کې ګوښه کېناستل او رهبانيت نشته، بلکه اجتماعيت او سمون دی.

په حديث کې داسې راځي:

عن ابن عمر عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "المسلم الذى يخالط الناس و يصبر على أذاهم أفضل من الذى لا يخالطهم ولا يصبر على أذاهم".[1]

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی، هغه له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې ويې فرمايل: " هغه مسلمان چې له خلکو سره ګډ ژوند کوي او دهغوی په کړاو صبر کوي، له هغه چاغوره دی، چې له خلکو سره ګډ ژوند نه کوي او د هغوی په کړاو صبر نه کوي".

نو مؤمن به په خلکو کې ګډ ژوند کوي، هلته به تل د رغونې او سمون هڅې کوي، امر بالمعروف او نهى عن المنکر به

[1] ـ رواه البخاري في الأدب المفرد والترمذى وابن ماجه وأحمد والطيالسي والبيهقي والطبراني وابن أبي شيبة في مصنفه و في الأدب والطحاوي وابن المقرئ في معجمه وابن قانع في معجم الصحابة.

کوي او تل به د سولې، ښېرازه او سوکاله ټولنې دجوړولو کوښښ او هڅه کوي.

## مهرباني او لورېنه

اسلام د ترحم، مهربانۍ، لورېنې او خواخوږۍ دين دی.
درحم کولو په هکله په حديث کې داسې راځي:
عن جرير بن عبدالله قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم: "لايرحم الله من لا يرحم الناس". [1]
له جرير بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "څوک چې په خلکو رحم نه کوي؛ په هغه الله رحم نه کوي".
په بل حديث کې داسې راځي:
عن ابي هريرة قال: سمعت أباالقاسم الصادق المصدوق صلی الله عليه وسلم يقول: "لاتنزع الرحمة إلا من شقی". [2]
له ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې ما له ريښتيني اوريښتيني ګڼل شوي ابوالقاسم (محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: " رحم کول يوازې له بد مرغه انسان څخه ايستل کېږي".
په بل حديث کې داسې راځي:

[1] - رواه البخاری ومسلم.
[2] - رواه الترمذی واحمد.

عن عبدالله بن عمرو قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " الراحمون يرحمهم الرحمن، إرحموا من فى الأرض يرحمكم من فى السماء".[۱]

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "په رحم کوونکو باندې الله رحم کوي؛ تاسو په هغو خلکو رحم وکړئ، چې په ځمکه کې دي؛ په تاسو به هغه ذات رحم وکړي، چې په اسمان کې دی".

## د مجلس دملګري خيال ساتل

اسلام د امن او خوشحالۍ د ژوند تېرولو، د باور زياتولو او د بدګمانۍ دمخنيوي لپاره دمجلس په آدابو کې ددې توصيه هم کوي، چې درې کسان وي، نو دوه به پټې خبرې نه کوي.

په يو حديث کې په دې هکله داسې راغي:

عن عبدالله بن مسعود قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "إذا كنتم ثلاثة فلا يتناجى إثنان دون الآخر حتى تختلطوا بالناس من أجل أن يحزنه".[۲]

له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " کله چې تاسو درې کسه وئ، نوله دريم پرته دې تر هغه دا دواړه پټې خبرې نه

[۱]- رواه الترمذى و ابوداود.
[۲]- رواه البخارى ومسلم.

کوي، تر څو چې نورو خلکو سره ګډ شئ، او دا له دې امله، چې هغه دريم خپه نه شي".

چې درې کسان وي او دوه يکې پټې خبرې کوي، نو معلومه خبره ده، چې له دريم نه يې پټوي او دا خبره له هغه سره انديښنه پيدا کوي، نو ځکه دا کار منع دی؛ خوکه زيات وو، نو بيا له يو سره انديښنه نه پيدا کېږي او هر يو وايي: د دې احتمال شته، چې له ما پرته له بل کوم يو نه يې پټوي يا لږ تر لږه زه يوائې نه يم.

## د مشرانو درناوی

په اسلام کې دمشرانو احترام او درناوي ته پاملرنه شوې ده.

دبوډاګانو او مشرانو داحترام په هکله په حديث کې داسې راځي:

عن أنس قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "ما أكرم شاب شيخا من أجل سنه إلا قيض الله له عند سنه من يكرمه".[١]

له انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: يو ځوان چې د مشرۍ يا بوډاتوب له کبله د کوم بوډا يا مشر عزت وکړي، نو دهغه د بوډاتوب په وخت کې به الله داسې څوک وګماري، چې د ده عزت وکړي".

---

[١]- رواه الترمذى.

# پرده پوخ دين

اسلام د انسانانو لپاره د عزت،شرافت او پرده پوخ دين دی. اسلام امر کوي، چې په خلکو پرده واچوئ او سپکاوی يې مه کوئ.

په يو حديث کې داسې راځي :

عن عقبة بن عامر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " من رأى عورة فسترها كان كمن أحيا موء ودة". [1]

عقبه بن عامر رضي الله عنه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "چا چې دچا عورت يا پټ راز وليد او پټ يې کړ، نو دا د هغه چاغوندې شو، چې له ژوندۍ په ګور منډلونه يې کومه جلۍ وساتله".

له عورت نه مطلب ظاهري شرمځايونه هم دي، چې که د چاشرمځای د ناپامۍ يا بې وزلۍ نه ښکاريده او هغه باندې يې جامه ور واچوله، يا يې بې وزلي ته جامې واخيستې، يا يې ورکړې، نو دا هم د عورت پټول دي او د چا معنوی عيب پټول هم دعورت پټول دي.

خو د بدکارانو او مجرمانو ناوړه او بدعملونه پټول روانه دي، هغه بايد په ډاګه شي او د خپل عمل په سزا ورسيږي، تر څو د فساد مخنيوی وشي.

---

[1] - رواه الترمذی واحمد.

## مينه ناک مؤمن

مؤمن به داسې ګوزموزی نه وي، چې خلک تر ې کرکه وکړي، بلکه دهغه د ښواخلاقو اوښه خوی له امله به خلک ورسره مينه کوي. په حديث کې په دې هکله داسې راځي:

عن أبی هريرة أن رسول الله صلی الله عليه وسلم قال:

" المؤمن مألف ولاخير فيمن لا يألف ولا يؤلف". ۱

له ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "مؤمن دمينې او الفت ځای دی؛ په هغه چاکې خير نشته، چې نه مينه او الفت کوي او نه له هغه سره مينه او الفت کيږي".

معنی دا چې دومره بد خويه وي،چې هيڅوک ورسره مينه نه کوي. نو مؤمن به هم له نورو سره مينه کوي او هم به د داسې ښه خوی څښتن وي،چې خلک ورسره مينه وکړي.

## له ښو خلکو سره ملګرتيا او له بدو ځان ژغورنه

اسلام حکم کوي، چې له ښو خلکو سره ملګرتيا وکړئ او له بدو ځان وژغورئ. دښه او ناوړه ملګري مثال په حديث کې داسې راغلی دی:

[1]- رواه احمد والبيهقی فی شعب الايمان.

عن أبى موسى قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "مثل الجليس الصالح والسوء كحامل المسك ونافخ الكير فحامل المسك إما أن يحذيك وإما أن تبتاع منه و إما أن تجد منه ريحا طيبة؛ و نافخ الكير إما أن يحرق ثيابك و إما أن تجد منه ريحا خبيثة".[1]

له ابو موسٰی رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "دنېک اوبد ملګري مثال دمښکو د پلورونکي او د بنۍ وهونکي پښ غوندې دی؛ دمښکو پلورونکی به يا څه مښک درکړي، يا به يې ترې په بيه واخلې او يا به ترې ښه بوی ومومې؛ او بنۍ وهونکی ينګربه دې يا جامې وسېځي او يابه ترې بدبوی ومومې".

نو د نېک ملګري مثال د مښکو د دوکاندار غوندې دی، چې خامخا به يې د نېکۍ څه ګټه دروررسېږي. او د بد ملګري مثال د بنۍ وهونکي ينګر او پښ غوندې دی، چې د بدۍ څه تاوان به يې خامخا درورسېږي.

## شپږ ښه کارونه

په يو حديث کې شپږ ښه کارونه داسې راغلي دي:

عن عبادة بن الصامت أن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "إضمنوا لى ستا من أنفسكم أضمن لكم الجنة: أصدقوا إذا حدثتم،

[1] - رواه البخارى ومسلم.

و أوفوا إذا وعدتم، و أدوا إذا ائتمنتم، واحفظوا فروجكم، وغضوا أبصاركم، وكفوا أيديكم". [۱]

له عباده بن صامت رضي الله عنه نه روايت دی، چې پېغمبر صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " ماته د خپلو ځانونو په هکله د شپږو کارونو ضمانت راکړئ؛ زه به درته د جنت ضمانت درکړم:

- کله مو چې خبرې کولې؛ رېښتيا ووايئ.
- کله مو چې ژمنه او وعده وکړه؛ وفاپرې وکړئ.
- کله چې چا درسره امانت کېښود، نو سلامت يې ور وسپارئ.
- خپل عورتونه ( شرمځايونه) له بدو وساتئ.
- خپلې سترګې د نامحرمو له ليدو نه ښکته کړئ.
- او لاسونه مو چاته د زيان رسولو نه را ايسار کړئ.

## ټوکې ټکالې

په هر شي کې افراط او تفريط (له بريده زياتی او کمی) ناسم دی. ټوکې ټکالې او د خوښۍ او خندا خبرې په اسلام کې روا دي؛ خوتر خپل بريده. او بريد يې دا دی، چې دروغ نه وي، د چاسپکاوی پکې نه وي، چاته پکې زيان نه رسېږي او ډېرې زياتې نه وي. تر دې

[۱]- رواه احمد والبيهقى.

چې له ماشومانو سره ټوکې او خوش طبعي په يو حديث کې داسې راغلې ده:

عن أنس قال: إن كان النبى صلى الله عليه وسلم ليخالطنا حتى يقول لأخ لى صغير: "يا أباعمير! ما فعل النغير؟" كان له نغير يلعب به فمات". ۱

له انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به له مونږ سره په هر څه کې ګډون کاوه، تر دې، چې زما د واړه ورور يوه ټرکو (کله خورک) مرغه ؤ، هغه به ورسره لوبې کولې، هغه بيا مړ شو، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم به ورته فرمايل: "ای د عمير پلاره! نغير (ټرکو) مرغه څه چل وکړ؟ ".

په يو بل حديث کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ټوکو په هکله داسې راغلي دي:

عن أبي هريرة قال: قالوا: يارسول الله! إنك تداعبنا؟! قال: "إنى لا أقول إلا حقا". ۲

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې صحابه ؤ وويل: ای د الله پېغمبره! ته خوکله کله له مونږ سره ټوکې هم کوې؟! هغه وفرمايل: " زه (په ټوکو کې هم) له رېښتيا او حق پرته بل څه نه وايم".

په بل حديث کې داسې راځي :

---

۱- رواه البخارى ومسلم.
۲- رواه الترمذى.

عن أنس أن رجلا إستحمل رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: " إنى حاملك على ولدناقة". فقال: ما أصنع بولدالناقة؟! فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "وهل تلدالإبل إلاالنوق". ١

له انس رضي الله عنه نه روايت دی، چې يو سړي له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د سپرلۍ ځاروی وغوښته، هغه ورته وفرمايل: " د اوښې په بچي به دې سپور کړم" هغه وويل: زه به د اوښې په بچي څه وکړم؟! رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: " ټول اوښان د اوښو بچي دي".

همدارنګه صحابه کرامو رضی الله عنهم به هم له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره کله کله ټوکې کولې. په يوحديث کې داسې راځي:

عن عوف بن مالك الأشجعى قال: أتيت رسول صلى الله عليه وسلم فى عزوة تبوك وهو فى قبة من أدم، فسلمت فـرد على وقـال: " أدخل" فقلت: أ كُلّي يارسول الله؟ قال: "كلك" فدخلت. ٢

له عوف بن مالك اشجعي نه روايت دی هغه وايي، چې زه د تبوک په غزوې کې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلم، هغه د څرمنې په يوې وړې خېمې کې ؤ، ماورباندې سلام واچاوه، هغه د سلام ځواب راکړ او ويې فرمايل: "راننوځه" ما ورته وويل: ای د الله پېغمبره! ټول در ننوځم؟! هغه وفرمايل: "ټول راننوځه" نو ورننوتم.

---

[1] - رواه الترمذی و ابوداود.

[2] - رواه ابوداود.

نو انسان خو تجزيه کېږي نه، چې ځو پېروکې ننوځي، يا څه ننوځي څه پاتې شي؛ خو دعوف رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ټوکه کول مقصدؤ، نو ځکه يې ورته وويل، چې آيا ټول خېمې ته درننوځم؟ او هغه هم بده ونه ګڼله، بلکه د ټوکې په انداز کې يې ورته وفرمايل، چې ټول راننوځه.

رسول الله صلى الله عليه وسلم د ځينو مشرانو په څېر ګوزموزی او تروش پروش نه ؤ، بلکه په وربن تندي او خوشحالۍ يې له صحابه کرامو سره ګډ ژوند او په مجالسو کې ګډون کاوه.

د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ښو اخلاقو، انصاف او ټولنيز ژوند يوه کيسه داسې راځي:

عن أسيد بن خضير رجل من الأنصار قال: بينما هو يحدث القوم - وكان فيه مزاح - بينا يضحكهم فطعنه النبى صلى الله عليه وسلم فى خاصرته بعود، فقال: أصبرنى. قال: " إصطبر" قال: إن عليك قميصا وليس على قميص. فرفع النبى صلى الله عليه وسلم عن قميصه، فاحتضنه وجعل يقبل كشحه. فقال: إنما أردت هذايارسول الله!". [1]

أسيد بن خضير، چې د انصارو يو سړی ؤ، له هغه نه روايت دی - هغه ټوکي سړی ؤ - يوه ورځ يې خلکو ته خبرې کولې او خندول يې، نو پېغمبر صلى الله عليه وسلم راغی او په تشي کې يې په يو ډکي چوخ کړ. هغه وويل: ماته اوس بدل راکړه؛ رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: " غچ دې واخله" هغه ورته وويل: تا کميس

[1] - رواه ابوداود.

اغوستى او ما باندې كميس نشته. پېغمبــر صلى الله عليه وسلم خپل كميس پورته كړ، نو اسيد ورځخه غېږ تاوه كړه او دهغه د تشي په ښكلولو يې پيل وكړ. بيا يې وويل: اى د الله پېغمبره! ماهمدا غوښتل.

طبراني اوإسماعيلي له عبدالله بن عمر رضى الله عنهما نه داسې روايت رانقل كړى دى: قال رسول الله صلّى الله عليه وسلّم: "إِنّي لأمزَحُ وَلاَ أَقُولُ إِلاّ حَقًّا". رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: " زه ټوكې كوم او يوائې ريښتيا وايم".

بزار او طبراني له أنس بن مالك رضى الله عنه نه روايت كوي، چې هغه وويل: كان رسول الله صلّى الله عليه وسلّم من أفكه الناس مع الصبي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم به له ماشومانو سره زياتې ټوكې كولې.

شهاب قضاعي په خپل مسند كې له أنس رضى الله عنه نه روايت كوي، چې نبي كريم صلّى الله عليه وسلّم وفرمايل: " رَوِّحوا القُلُوبَ ساعَةً بَعدَ ساعَة ".

" كله كله خپل زړونه خوشحالوئ ". مطلب يې همدا ټوكې ټكالې دي.

د ترمذي په شمائلو كې، د طبراني په معجم أوسط كې ، د ابن سيرين په (كتاب الزهد) كې د هناد كوفي په (الزهد) كې او د أبونعيم په (صفة الجنه) كې له عائشې رضي الله عنها نه روايت راغلى دى، چې هغه وايي: أتت عجوزمن الأنصار إلى النبي صلّى

الله عليه وسلّم فقالت: يا رسول الله! أدع لي بالمغفرة. فقال لها: " أمَا عَلمت أنّ الجنّةَ لاَيَدخلُهُاَ العَجَائِزُ؟ " فبكت ، فتبسم رسول الله صَلّى اَلله عليه وسلّم وقال لها: لَستَ يَومَئذ بعَجُوزأمَا قَرَأت قَولَهُ تعالى: " إنّا أنشَأنَاهُنّ إنشَاءَ فَجَعَلنَاهُنّ أبكَاراً عُرُباً أَترَاباً "؟.

نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته د انصارو یوه بوډۍ راغله او ویې ویل: ای د الله پېغمبره! ماته د ښښې دعاء وکړه. رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: " آیا ته نه یې خبره، چې جنت ته بوډۍ ګانې نه ننوځي؟". هغې وژړل؛ رسول الله صلی الله علیه وسلم مسکی شو او ورته ویې فرمایل: " ته به هغه وخت بوډۍ نه یې، آیا تا د الله تعالی دا وینا نه ده لوستې؟ چې فرمایي: " مونږ دا د جنت ښځې پیدا کړې دي، پېغلې، مینه ناکې او همزولې مو جوړې کړې دي".

ابن کثیر په (البدایة والنهایة) کې، زبیربن بکار په (کتاب المزاح) کې او ابن أبي الدنیا له زید بن أسلم رضی الله عنه نه داسې روایت کوي: أن امرأة يقال لها أم أيمن جاءت النبي صلّى الله عليه وسلّم في حاجة لزوجها فقال لها: "مَن زَوجُك ؟" فقالت: فلان. فقال: "الذي في عَينه بَيَاضٌ؟" فقالت: يا رسولَ الله! ما بعينه بياض. قال:"بلى إنّ بعَينه بَيَاضاً" فقالت: لاوالله. فقال النبي صلّى الله عليه وسلّم: "وَمَا من أحَد إلاّ بعَينه بَيَاضٌ" وفي رواية: فانصرفت عَجلى إلى زوجها وجعلتَ تتأمّل عينيه. فقال لها: ما شأنك؟ فقالت: أَخبرني رسولُ الله صلّى الله عليه وسلّم أن في عينيك بياضاً. فقال لها: أما ترين بياضَ عيني أكثَرمن سوادها؟.

يوه ښځه چې ام ايمن نومېده، د خپل مېړه د كومې اړتيا په هكله نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته راغله؛ هغه ورته وفرمايل: "مېړه دې څوک دی؟". هغې وويل: فلانی. هغه و فرمايل: "هغه چې په سترګه كې يې سپينوالی دی؟". هغې وويل: ای د الله پېغمبره! د هغه په سترګه كې خو سپينوالی نشته. هغه وفرمايل : "ولې نه، د هغه په سترګه كې سپينوالی دی". هغې وويل: نه په الله قسم دی چې نشته. نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " د هرچا په سترګه كې سپينوالی وي". په يو روايت كې راځي، چې په بيړه خپل مېړه ته ورغله او د هغه دواړو سترګو ته يې په سوچ وركتل. هغه ورته وويل: څه دي چې راګورې!؟. هغې وويل: زه رسول الله صلى الله عليه وسلم خبره كړم، چې ستا په سترګو كې سپينوالی دی. هغه ورته وويل: آيا نه وينې، چې زما د سترګو سپينوالی له توروالي نه زيات دی؟.

أبويعلى او زبربن بكار په كتاب الفكاهه كې له يحيى بن عبدالرحمن بن حاطب نه روايت كوي، هغه وايي: عائشې رضى الله عنها وويل: كان عندي رسول الله صلّى الله عليه وسلّم وسودة فصنعتُ خزيرا فجئتُ به فقلتُ لسودة: كُلِي. فقالت: لاأُحبّه. فقلت: والله لَتأ كلين أولاَ لطخنّ وجهكِ. فقالتَ: ما أنا بباغية. فأخذتُ شيئاً من الصحّفة فلطختُ به وجَهها ورسولُ الله صلّى الله عليه وسلّم ما بيني وبينها ، فخفض لها رسول الله صلّى الله عليه وسلّم ركبتيه لِتَستقيدَ مني، فتناولت من الصحّفة شيئاً فمسحت به وجهي، وَجعل رسولُ الله صلّى الله عليه وسلّم يضحك.

رسول الله صلى الله عليه وسلم او سوده رضى الله عنها لـه ماسره وې؛ ما شيره پخه كړه او رامې وړه؛ سودې ته مې وويل: خوره. هغې وويل: زما خوښه نه ده. ما ورته وويل: په الله قسم دى، چې يا به يې خورې او يا به يې پرې ستا مخ ككړوم. هغې وويل: زه يې نه غواړم. مالږه شيره له كاسې را واخيستله او د هغې مخ مې پرې ككړ كړ؛ رسول الله صلى الله عليه وسلم زما او د هغې تر منځ و؛ ورته په ګونډو شو، چې سوده له ما نه خپل بدل واخلي؛ هغې له كاسې لږه شيره را واخيستله ، زما په مخ يې ومښله او رسول الله صلى الله عليه وسلم له خندا شين و.

له بيهقي نه په (الآداب) كې يو روايت داسې راغلى دى: عن أنس أن رجلا من أهل البادية إسمه زاهربن حرام وكان يهدي للنبي صلّى الله عليه وسلّم من البادية، فيجهزه رسول الله صلّى الله عليه وسلّم إذا أراد أن يخرج. فقال النبي صلّى الله عليه وسلّم: " إن زَاهَراً بَاديَتُنا وَنَحنُ حَاضرُوه " وكان النبي صلّى الله عليه وسلّم يحبه وكان دميماً ، فأتى النبيّ صلّى الله عليه وسلّم يوما وهو يبيع متاعه فاحتضنه من خلفه وهولا يبصر ؛قال :أرسلني، من هذا؟ فالتفت النبيّ صلّى الله عليه وسلّم فجعل لا يألو ما ألزق ظهره رسول الله صلّى الله عليه وسلّم حين عرفه، وجعل النبي صلّى الله عليه وسلّم يقول: " مَن يَشتَري العَبدَ؟" فقال: يا رسول الله! إذاً والله تجدني كاسداً ، فقال النبي صلّى الله عليه وسلّم: " لَكِن عندَ الله لَستَ بَكاَسِدٍ " .

له انس رضی الله عنه نه روايت دی،چې د زاهربن حرام په نامه يو کوچی و، چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته به يې له بانډو نه ډالۍ راوړې؛ هغه به چې کله ستنېده، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم به هم څه سوغات ورکاوه. نبي کريم صلی الله عليه وسلم به فرمايل: " زاهر زمونږ کوچی دی او مونږ يې د ښيين يو". هغه بدرنګ و؛خو نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته ډېر ګران و. يوه ورځ هغه خپل توکي پلورل ،چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم راغی، هغه نه ليده او د شا له پلوه يې ترې غېږه چاپېره کړه. هغه وويل: خوشې مې کړه،څوک يې؟. چې کتل يې نبي کريم صلی الله عليه وسلم و، کله يې چې و پېژانده؛ باک يې نه ګاڼه، چې ملا يې نبي کريم صلی الله عليه وسلم پورې مښتې وه. نبي کريم صلی الله عليه وسلم شروع شو، چې فرمايل يې: "غلام څوک اخلي؟". هغه وويل: ای د الله پېغمبره! په الله قسم دی، چې ته به ما ارزان ومومې. نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "خو ته له الله سره ارزان نه يې".

ابْن ماجه د خپل سنَن په طب کې ، حَاكِم په الْمُسْتَدْرك کې او بَزّار په خپل مسْند کې له عبد الحميد بن صَيْفِي بن صُهَيْب نه روايت کوي هغه وايي: قدم صهيب من مكة فنزل على النبي صلّى الله عليه وسلّم وأبي بكر رضي الله عنه، فدخل النبي صلّى الله عليه وسلّم وصهيب يشتكي عينيه، وهو يأكل تمراً فقال: " يا صُهَيبُ! أتَأكُلُ التّمرَعَلَى عِلّة عَينَيكَ ؟" فقال: إنّمَا آكُلُ مِنَ الشّقِ الصحيحِ. فضحك رسول الله صَلّى الله عليه وسلّم حتى بدت نواجذه.

صهيب رضی الله عنه له مکې مکرمې نه راغی؛ نبي کريم صلی الله عليه وسلم او ابو بکر رضی الله عنه کره مېلمه شو. نبي کريم صلی الله عليه وسلم راننه واته؛ د صهيب سترګې خوږېدې او خورما يې خوړلې. ورته ويې فرمايل:" ای صهيبه! سترګې دې خوږېږي او خورما خورې!؟." هغه وويل: زه يې د سترګې له روغ کونجه خورم. نبي کريم صلی الله عليه وسلم داسې وخندل، چې د ژامنې غاښونه يې ځرګند شول.

امام بخاری رحمه الله په (الأدب المفرد) کې له بکربن عبدالله المزني نه روايت کوي هغه وايي: کان أصحاب رسول الله صلّی الله عليه وسلّم يتبادحون بالبطيخ،فإذا کانت الحقائق کانوا هم الرجال .

د رسول الله صلی الله عليه وسلم صحابه کرامو به په خپلو منځو کې يو بل په هندوانو ويشتل؛ کله به چې د رښتيا ميدان راغی، نو بيا به همدوی د سړيتوب کارونه کول.

حاکم په (المستدرك) کې او مقريزي په (إمتاع الأسماع) کې له ليث نه روايت کوي، چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم صحابي (عبد الله بن حذافه) رضی الله عنه يو ټوکي سړی و؛ هغه وايي: بلغني أنه حل حزام راحلة النبي صلّی الله عليه وسلّم في بعض أسفاره حتی کاد رسول الله صلّی الله عليه وسلّم أن يقع. قلت لليث: ليُضحکه ذلك؟ قال: نعم.

ماته دا خبره را رسېدلې ده، چې عبدالله بن حذافه په يو سفر کې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د سپرلۍ پيارمه (د خېټې لاندې پړی

او تسمه) پرانسته تر دي؛ نږدې وو، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم را پرېوځي. ما ليث ته وويل: دا كار يې ددې لپاره كړى و، چې ويې خندوي؟ هغه وويل : هو.

ابن قتيبه په (غريب الحديث) كې، ابن الأثير په (النهاية) كې او بدرالدين الغزي په (المراح في المزاح) كې د عثمان بن عفان رضى الله عنه له غلام: نائل نه روايت رانقلوي، چې هغه وايي: خرجت مع مولاي عثمان في سفرة سافرناها مع عمرفي حج أوعمرة، وكان عمر وعثمان وابن عمرأيضا، وكنت وابن عباس وابن الزبير في شُبّان معنا أيضا، ومعنا رَباح بن المعترف الفهري، فكنا نترامى بالحنظل.

زه له خپل بادار عثمان رضى الله عنه سره په يو سفر كې لاړم چې مونږ عمر رضى الله عنه سره د حج يا عمرې په سفر تللي وو. عمر، عثمان او عبدالله بن عمر رضى الله عنهم هم وو؛ زه، عبدالله بن عباس او عبدالله بن زبير د ځوانانو په يوه ډله كې وو، چې له مونږ سره وو، له مونږ سره رباح بن معترف فهري هم و؛نو مونږ به يو تربله په مړغوني ويشتل كول.

نعيمان انصاري رضى الله عنه يو جليل القدر صحابي او ډېر ټوكي سړى و؛ رسول الله صلى الله عليه وسلم او صحابه به يې خندول. ابن حجر په (الإصابه) كې او ځينو نورو محدثينو له ربيعه بن عثمان نه روايت نقل كړى هغه وايي: دخل أعرابي على النبي صلى الله عليه وسلم وأناخ ناقته بفنائه. فقال بعض الصحابة للنعيمان الأنصاري: لوعقرتها فأكلناها فإنا قد قرمنا إلى اللحم

ففعل فخرج الأعرابي وصاح: وا عقراه يا محمد! فخرج النبي صلى الله عليه وسلم فقال: من فعل هذا؟ فقالوا: النعيمان، فأتبعه يسأل عنه حتى وجده قد دخل دار ضباعة بنت الزبير بن عبد المطلب واستخفى تحت سرب لها فوقه جريد، فأشار رجل إلى النبي صلى الله عليه وسلم حيث هو، فأخرجه فقال له: "ما حملك على ما صنعت؟" قال: الذين دلوك عليّ يارسول الله!هم الذين أمروني بذلك. قال: فجعل يمسح التراب عن وجهه ويضحك ثم غرمها للأعرابي.

يو کوچي خپله اوښه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د کور خواته ښې کړه او هغه نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته ورننواته؛ ځينو صحابه و نعيمان انصاري ته وويل: زمونږ غوښې ته زړه شوی دی، که دا اوښه دې حلاله کړې وای؛ مونږ به خوړلې وای. هغه دا کار وکړ. کوچی چې راوواته؛ چيغه يې کړه: برباد شوم ای محمده! نبي کريم صلی الله عليه وسلم راوواته؛ ويې فرمايل: دا کار چا کړی دی؟ هغوی وويل: نعيمان کړی دی؛ رسول الله صلی الله عليه وسلم يې پلټنه پيل کړه، د هغه په هکله يې پوښتنه کوله تر دې، چې په داسې حال کې يې و مونده؛ چې د ضباعه بنت زبير بن عبد المطلب په کور کې يوې خوځې ته ننوتی و، چې له پاسه پرې د خورما د ونې پاڼې پرتې وې، يو سړي نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته اشاره وکړه، چې دغلته دی؛ هغه يې را وايسته او ورته ويې فرمايل: دا کار دې ولې کړی دی؟ هغه وويل: ای د الله پيغمبره!هغه خلک، چې زه يې دروښودم، همدوی راباندې دا کار وکړ. رسول الله صلی الله

عليه وسلم د هغه له مخ نه خاورې پاکولې او خندل يې. بيا يې کوچي ته د اوښې تاوان ورکړ.

صحابه او نعيمان په دې پو هېدل، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم کوچي ته تاوان ورکوي؛ ځکه يې دا کار وکړ.

سبحان الله! څومره مهربانه پېغمبر!!!.

نو ټوکې ټکالې روا دي؛ خو:

- چې دروغ پکې نه وي.
- خپل يا د بل چا د پت او عزت سپکاوی پکې نه وي.
- سپکې، بې باکه او ناوړه نه وي.
- په دين، ديني شعائرو او احکامو باندې ملنډې او سپکاوی پکې نه وي.(چې دا کفر دی).
- هروخت، بې ځايه او بې بريده نه وي.
- ځان اويا نوروته پکې زيان رسول او د چا خفه کول پکې نه وي.
- د چا وېرول او په اند ېښنې اخته کول پکې نه وي.

## تواضع

لکه څرنګه چې اسلام مونږ له کبر څخه منع کوي؛ همدارنګه په تواضع او عاجزۍ کولو او خاکسارۍ امر کوي او ترغيب راکوي، تر څو انسانان يو په بل ځان لوی او لوړ ونه ګڼي او د امن، خوشحالۍ او سوکالۍ ژوند وکړي.

په حديث کې د تواضع په هکله داسې راغي:

عن عياض بن حمار المجاشعى أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "إن الله أوحى إلى أن تواضعوا حتى لا يفخر أحد على أحد ولا يبغي أحد على أحد".[1]

له عياض بن حمار مجاشعي رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "الله تعالى ماته وحې وکړه، چې تاسو تواضع او خاکساري وکړئ، تر څو هيڅوک په هيچا ونه وياړي او هيڅوک په هيچا تېری ونه کړي".

## د سلام اچول

د اسلام له آدابو نه يو ادب د سلام اچول دي، چې يوتر بله د مخ کېدو يا تېرېدو په وخت کې به وايي: (السلام عليکم) (په تاسو دې سلام وي). او هغه به په ځواب کې ورته وايي: (وعليکم السلام) (او په تاسو دې هم سلام وي). (ورحمة الله و برکاته) هم ورسره ويلی شي. ښه داده، چې د ځواب ورکوونکی يې ورزيات کړي.

په حديث کې د سلام په هکله داسې راغي:

عن عبدالله بن عمرو أن رجلا سأل رسول الله صلى الله عليه وسلم أى الإسلام خير؟ قال: " تطعم الطعام و تقرئ السلام على من عرفت و من لم تعرف".[2]

---

[1]- رواه مسلم.
[2]- رواه البخارى ومسلم.

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی، چې يو سړي له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړه، چې په اسلام کې کوم يو عمل غوره دی؟ هغه ورته وفرمايل: " ډوډۍ ورکوه او که ځوک دې پېژندل او که نه؛ سلام پرې اچوه".

په بل حديث کې د سلام آداب داسې راغلي دي:

عن أبى هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "يسلم الراكب على الماشى، والماشى على القاعد، والقليل على الكثير".[1]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "سپور به په پيدل باندې سلام اچوي، پيدل روان به يې په ناست اچوي اولږ به يې په ډېرو اچوي".

## په ماشومانو سلام

په ماشومانو باندې هم سلام اچول مشروع دي. په يو حديث کې داسې راځي:

عن أنس قال: "إن رسول الله مر على غلمان فسلم عليهم".[2]

له انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په هلکانو تېرېده، نو سلام يې پرې واچاوه".

[1]- رواه البخارى ومسلم.
[2]- رواه البخارى ومسلم.

# په ښځو سلام

په ښځو هم سلام اچول مشروع دي. په حديث کې داسې راځي:

عن جرير أن النبی صلی الله عليه وسلم مر علی نسوة فسلم عليهن .١

له جرير رضي الله عنه نه روايت دی، چې پيغمبر صلی الله عليه وسلم په ښځو تېريده، نو سلام يې پرې واچاوه.

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أسماء بنت يزيد قالت: مر علينا رسول الله صلی الله عليه وسلم فی نسوة فسلم علينا .٢

له اسماء بنت يزيد رضي الله عنها نه روايت دی هغه وايي: په مونږ ځو ښځو رسول الله صلی الله عليه وسلم تېرېده، نو سلام يې راباندې واچاوه.

په نامحرمو ښځو باندې د سلام په وخت کې به هم (غض البصر) (د سترګو ښکته کول) نه هېروي، ورګوري به نه، سلام به پرې اچوي او هغوی به هم د سلام ځواب په ښکته سترګو وايي.

---

[١]- رواه أحمد.

[٢]- رواه ابوداود و ابن ماجه والدارمي.

## درې ځل اجازه غوښتل

د اسلام له آدابو نه بل ادب دا دی، چې کله دې د چاد کور له وره نه دباندې درې ځل اجازه وغوښته او ځواب دې وانه ورې، نو بيرته ستون شه.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبي موسیٰ قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :

"إذا استأذن أحدكم ثلاثا فلم يؤذن له فليرجع". [1]

له ابو موسى رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: "کله چې ستاسو يو کس درې ځل اجازه وغوښته او اجازه ورته ونه شوه، نو بېرته دې ستون شي".

## په اجازې کې نوم اخيستل

بل ادب دا دی، چې چا درڅخه له وره دننه پوښتنه وکړه، چې څوک يې؟ نو نوم واخله؛ داسې مه وايه چې، زه يم.له ( زه يم) ويلو نه د چا پېژندل نه شي کېدی؛هرڅوک (زه) دی.

په حديث کې داسې راځي:

[1] - رواه البخاری و مسلم.

عن جابر قال: أتيت النبى صلى الله عليه وسلم فى دين كان على أبي فدققت الباب فقال: "من ذا؟" فقلت: أنا. فقال: "أنا أنا" كأنه كرهها".١

له جابر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: زه پېغمبر صلى الله عليه وسلم ته د يو پور په هکله ورغلم، چې زما په پلار ؤ، نو دروازه مې وټکوله، هغه وفرمايل: "دا څوک دی؟" ما ورته وويل: زه يم. هغه وفرمايل: " زه هم زه يم". لکه چې دا خبره يې بده وګڼله". نو په (زه يم) ويلو څوک نه پېژندل کېږي. بايد خپل نوم واخلي، چې فلانی يم.

## د چا د کور وره ته مخامخ مه ودرېږه

د اسلام له آدابو يو ادب دادی، چې که له چاسره دې کارؤ، يا د چا ملاقات ته لاړې او د هغه د کور ور يا زنګ دې واهه، يادې پوښتنه کوله او يا دې اجازه غوښته، نو د کور د وره مخامخ مه ودرېږه، بلکه ښي يا کيڼ لورته ودرېږه؛ هسې نه، چې د کور دننه درته څه ځرګند شي او د چا د کور دننه ورليدل منع دي.

په حديث کې داسې راځي:

---

١- رواه البخارى ومسلم.

عن عبدالله بن بسر قال: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا أتىٰ باب قوم لم يستقبل الباب من تلقاء وجهه ولكن من ركنه الأيمن أوالأيسر فيقول: "السلام عليكم، السلام عليكم".[1]

له عبدالله بن بسر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسـول الله صلى الله عليه وسلم به چې كله دچادكور وره ته راغی، نو د وره مخامخ به نه ودرېده، بلكه د ښي يا كيڼ كونج لور ته به ودرېد او بيا به يې وفرمايل:
" السلام عليكم، السلام عليكم".

## د شپې ځينې اداب

اسلام د ژوند په هر اړخ او هر قدم كې كوټلي بنسټونه او ګټور ادبونه راپه ګوته كوي. له ماښام نه وروسته د ويده كېدو تر وخته ځينې ګټور آداب په لاندې حديث كې داسې راغلي دي:

عن جابر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " خمروا الآنية واوكوا الأسقية وأجيفواالأبواب واكفتواصبيانكم عند المساء فإن للجن إنتشارأوخطفة واطفئواالمصابيح عندالرقاد فإن الفوسيقة ربما إجترت الفتيلة فأحرقت أهل البيت".[2]

له جابر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "دماښام او دشپې له پلوه لوښي

---

[1]- رواه أبو داود.
[2]- رواه البخارى ومسلم.

پټې کړئ، د غړکيو خولې وتړئ، دروازې بندې کړئ او ماشومان مو په کور کې ايسار کړئ؛ ځکه چې په دې وخت کې پېريان خپرېږي او تښتونې کوي. د ويده کېدو په وخت کې چراغونه مړه کړئ، ځکه چې ډېر ځله مږه يا موږک پلته را کاږي او د کور خلک وسوځوي".

د لوښو پټول او دغړکيو د خولو تړل خو هر وخت ضرور دي؛ خو په دغه وخت کې ورته زياته پاملرنه په کار ده. او اور يا ډيوه لاټين لګېدلي پرېښودل هم خطرناک دي، نو وژل او ګل کول يې اړين دي.

## يوه جامع طبي مشوره

رسول الله صلى الله عليه وسلم د انسانانو د صحت لپاره يوه ډېره جامع طبي مشوره فرمايلې ده، چې که عمل پرې وشي، نو د ډېرو ناروغيو مخنيوی به پرې وشي.

هسې خو د اسلام ټول احکام د انسانانو د دنيوي او اخروي ښېګړو او نېکمرغيو ضامن دي او په هر حکم کې يې ښېګړې نغښتې دي؛ خو دلته چې کوم حديث راوړو په دې کې يو جامع طبي علاج دی.

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "المعدة حوض البدن والعروق إليها واردة، فإذا صحت المعدة،

صدرت العروق بالصحة، و إذا فسدت المعدة صدرت العروق بالسقم". [۱]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: "معده د بدن ډنډ دی او رګونه ورته راغلي دي، که معده روغه وه، نو په رګونو کې روغتيا ځي او که معده فاسده شي، نو په رګونو کې ناروغي ځي".

رېښتيا هم که په خوراک کې احتياط وشي، ډېر او ناوړه خوراک ونه شي، نو معده به روغه وي او د معدې له روغتيا سره د ټول بدن روغتيا تړلې ده. په ينې، زړه، پپوس او پښتورګو باندې چې څه تېرېږي او دزړه له لارې ټول بدن ته وېشل کېږي؛ دا ټول له معدې ورځي.

ډېر خوراک کول په اسلام کې ښه نه دي ګڼل شوي. په يو حديث کې داسې راځي:

عَنْ مقْدَامِ بْنِ مَعْدي كَرِبَ ، قَالَ : سَمعْتُ رَسُولَ الله صَلّى اللّهُ عَلَيْه وَسَلّمَ يَقُولُ : " مَا مَلَأَ آدَمَيٌّ وعَاءً شَرًّا منْ بَطْنٍ. بِحَسْبِ ابْنِ آدَمَ أُكُلَاتٌ يُقمْنَ صُلْبَهُ ، فَإِنْ كَانَ لاَمَحَالَةَ فَثُلُثٌ لِطَعَامه وَثُلُثٌ لِشَرَابِه وَثُلُثٌ لِنَفَسه". [۲]

له مقدام بن معديکرب رضی الله عنه نه روايت دی، هغه وايي: ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه اوريدلي دي، چې فرمايل يي: " يو انسان له خپلې خېټې نه ناوړه لوښی بل نه دی ډک کړی؛ د يو انسان

---

[۱]- رواه البيهقي.
[۲]- رواه الترمذي وابن ماجه والنسائي وأحمد والحاكم والبيهقي في السنن وشعب الإيمان وابن حبان والطبراني في الكبير.

لپاره يو څو مړی بس دي، چې ملا يې پرې نېغه وي؛ که ډېره اړتياوه، نو خېټه دې درې ځايه کړي: يوه يې د خوړو، يوه يې د څښاک او دريمه يې د ساه اخيستلو لپاره".

## په ښي لاس خوراک څښاک

د اسلام دپاکۍ له اصولو نه داهم دی، چې د خوراک، څښاک، ور کړې راکړې او پاکو کارونو لپاره ښی لاس تاکل شوی دی او داستنجا، پوزې پاکولو او نورو ناولتوبونو لپاره کيڼ لاس دی. اګر چې د دواړو وينځل او پاک ساتل هم مطلوب دي؛ خو کارونه يې معلوم دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم:

"إذا أكـل أحدكم فليأ كل بيمينه و إذا شرب فليشرب بيمينه".[1]

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "په تاسو کې چې چا خوراک کاوه، نو په خپل ښي لاس دې يې وخوري او چې څښاک يې کاوه، نوهم په خپل ښي لاس دې يې وڅښي".

په بل حديث کې داسې راځي:

[1]- رواه مسلم.

عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " لا يأكلن أحدكم بشماله و لايشربن به فإن الشيطان يأكل بشماله ويشرب به". ۱

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "په تاسو کې دې هيڅوک په خپل کيڼ لاس نه خوراک کوي او نه څښاک، ځکه چې شيطان په خپل کيڼ لاس خوړل او څښل کوي".

## په تکيه خوړل

داسلام له آدابو او د صحت او روغتيا له بنستونو نه دا هم دی، چې په تکيه خوړل منع دي . په حديث کې داسې راځي:

عن أبي جحيفة قال: قال النبى صلى الله عليه وسلم: "لاآكلُ متكئاً". ۲

له ابوجحيفه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې پېغمبر صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " زه په داسې حال کې خوراک نه کوم، چې تکيه مې وهلې وي".

---

[1] ـ رواه مسلم.
[2] ـ رواه البخارى.

## په خوراک کې هم اعتدل

اسلام په هر قدم کې د اعتدل او انصاف کولو حکم کوي؛ تر دې چې کله څو کسان په دسترخوان او په پېنډه ناست وي؛ د يوې پېنډې خلک په خوړو کې مساوي حقوق لري، نو ځکه بايد د بل برخه ونه خوړل شي. په حديث کې داسې راځي:

عن ابن عمر قال: "نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم أن يقرن الرجل بين التمرتين حتى يستأذن أصحابه".[۱]

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي: "رسول الله صلى الله عليه وسلم له دې منع کړې ده، چې يو سړی دملګرو له اجازې پرته دوه دوه خورماوې سره يو ځای وخوري".

## له حيواناتو سره ښېګړه

اسلام په انسانانو سر بېره له حيواناتو سره هم د ښېګړې کولو، په هغو د ظلم نه کولو او د پاملرنې حکم کوي.

په حديث کې داسې راځي:

عن سهل بن حنظلية قال: مر رسول الله صلى الله عليه وسلم ببعير قد لحق ظهره ببطنه فقال: "إتقوا الله فى هذه البهائم المعجمة فاركبوها صالحة واتركوها صالحة".[۲]

[۱]- رواه البخارى ومسلم.
[۲]- رواه أبوداود.

له سهل بن حنظلية رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په يوه اوښ تېرېده، چې ملايې له خېټې سره نښتې وه، نو ويې فرمايل: " د دې بې زبانه څارويو په هکله له الله نه ووېرېږئ، په روغو سپاره شئ او روغ رمټ يې پرېږدئ".

په بل روايت کې په مرغانو د مهربانۍ په هکله داسې راغلي دي:

عن عبدالرحمن بن عبدالله عن أبيه قال: كنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم في سفر فانطلق لحاجته فرأينا حمرة معها فرخان فأخذنا فرخيها فجاءت الحمرة فجعلت تفرش فجاء النبى صلى الله عليه وسلم فقال:"من فجع هذه بولدها؟ ردوا ولدها إليها".[1]

عبدالرحمن بن عبدالله له خپل پلار نه روايت کوي هغه وايي: مونږ په يو سفر کې له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره وو، هغه د خپل حاجت د پوره کولو لپاره لاړ، مونږ يوه مرغۍ وليده، چې دوه بچي ورسره وو، مونږ د هغې دواړه بچي را واخيستل، مرغۍ راغله او وزرونه يې رپول، پېغمبر صلى الله عليه وسلم راغی او ويې فرمايل: " دا مرغۍ چاپه خپلو بچو زهيره کړې ده؟ بچي يې بېرته ورکړئ".

نو په اسلام کې يواځې د انسانانو نه، بلکه د ژويو او حيواناتو حقوق او ښېګړې هم خوندي دي.

---

[1]- رواه ابوداود.

## د مريانو او وينځو ازادول

د جاهليت په وخت کې به له مريانو او وينځو سره له حيواناتو نه هم بتر او ناوړه سلوک کيده. اسلام مريانو او وينځو ته ټول انساني حقوق ورکړل، بلکه د هغوی د ازادولو ترغيب يې ورکړ. که څوک دمال په مقابل کې د مکاتب په شکل ازادي غواړي، نو اسلام حکم کوي، چې د ازادۍ دا معامله ورسره وکړئ او په دې سربېره مالي مرسته هم ورسره وکړئ. الله تعالی فرمايي:

"وَالّذِينَ يَبْتَغُونَ الْكِتَابَ ممّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْراً وَآتُوهُم مِّن مَّالِ اللهَ الّذِي آتَاكُمْ".[1]

"هغه مريان او وينځې، چې د آزادۍ د تړونليک غوښتنه کوي، نو که په هغوی کې مو نېکي موندله؛ ليکل ورسره وکړئ او د الله له هغه مال نه څه ورکړئ، چې تاسو ته يې درکړی دی".

همدارنګه که د چا له لاسه په سهوه او خطا کې څوک ووژل شو، نو په ديت سر بېره به مريی يا وينځه هم ازادوي.

همدارنګه د ټينګ قسم کفارې کې د مريي يا وينځې ازادول هم شته.

د مريانو او وينځو د ازادولو لپاره د زکات ورکول هم د زکات په مصارفو کې راغلي دي.

---

[1]- سورة النور: ۳۳.

دظهار په کفارې کې د مريي يا وينځې ازادول دي .

همدارنګه الله تعالى د نورو حقوقو په څنګ کې مريانو او وينځو سره د ښېګړې حکم داسې کوي:

"وَاعْبُدُواْ اللّهَ وَلاَ تُشْرِكُواْ بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالجَنبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ".[١]

" د الله عبادت وکړئ ، هيڅ شی ورسره مه شريکوئ او له مور او پلار، خپلوانو، يتيمانو، بې وزلو، خپلوان ګاونډي، په خواکې ګاونډي، د خوا ملګري، مسافر او هغو مريانو او وينځو سره ښېګړه کوئ، چې ستاسو په واک کې دي".

اسلام مريانو او وينځو سره د ښه سلوک حکم کوي او دهغوی د آزادولو زيات ترغيب ورکوي. په حديث کې دهغوی د ازادولو په هکله داسې راځي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "من أعتق رقبة مسلمة أعتق الله بكل عضومنه عضوا من النار حتى فرجه بفرجه".[٢]

له ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "چا چې مسلمان مريی يا وينځه ازاد کړل، نو الله به د هغه دهر غړي په بدل کې د ده غړی له اوره

[١]- سورة النساء: ٣٦.
[٢]- رواه البخارى ومسلم.

وژغوري، تر دې چې شرمځای به يې د هغه د شرمځای په بدل کې وساتي".

معنی دا چې هغه هم يو انسان دی او د ازادوونکي انسان غوندې غړي يې دي، نو د هغه د ازادۍ په بدل کې به د ده ټول بدن له اوره وژغوري.

په بل حديث کې داسې راغلي:

عن أبي هريرة عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: (( من أعتق شقصا فى عبد أعتق كله إن كان له مال فإن لم يكن له مال، أستسعى العبد غير مشقوق عليه".۱

له ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی، چې پېغمبر صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "چا چې له مشترک مريي څخه څه برخه ازاده کړه؛ که مال يې درلوده، نو د هغه په بدل کې به ټول ازاد شي او که مال يې نه ؤ، نو مريي نه به دمال ګټلو غوښتنه وشي او سختي به ورسره نه کېږي".

همدارنګه که څوک د نږدې خپلوان مريي يا وينځې مالک شو، نو هغه پخپله ازاد شو.

په حديث کې داسې راغلي:

عن الحسن عن سمرة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: " من ملك ذا رحم محرم فهو حر".۲

---

[۱]- رواه البخارى ومسلم.
[۲]- رواه الترمذى وابوداود وابن ماجة.

حسن بن سمره رضي الله عنه له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي، چې هغه وفرمايل: "څوک چې دمحرم خپلوان مالک شو، نو هغه ازاد شو".

همدارنګه هغه وينځه، چې دخپل بادار نه بچى وزېږوي؛ هغه هم ازادېږي.

په حديث كې داسې راځي:

عن ابن عباس عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: " إذا ولدت أمة الرجل منه، فهى معتقة عن دبرمنه أو بعده".[1]

له عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دى هغه له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي، چې هغه وفرمايل: " كله چې د يوسړي وينځې له هغه نه بچى وزېږاوه، نو هغه د هغه له مړينې وروسته ازاده ده".

دې وينځې ته (أم الولد) ( د بچي مور) ويل كېږي او د ام الولد پلورل ناروا دي.

اسلام له وينځو او مريانو سره دجاهليت هغه ناروا سلوک په كلكه غندي او منع كوي، چې د انسان په سترګه به ورته نه كتل كېدل او ظلمونه به پرې كېدل، بلكه په ښه سلوک سربېره د مريانو او وينځو د ازادولو لپاره مختلفې بهانې لټوي، د ازادولو ترغيب وركوي، په كَفَارو كې پرې د مريي يا وينځې د ازادولو سزا ږدي.....

[1]- رواه الدارمي.

# د مريي او وينځې وهل منع دي

لکه مخکې مو چې وويل، اسلام د جاهليت د غلامۍ او باداري سخت مخالف دی؛ غلام او مريي ته ورور وايي او ورسره د ښه سلوک کولو امر کوي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبى مسعود الأنصارى قال: كنت أضرب غلاما لى فسمعت من خلفي صوتا: "إعلم أبا مسعود! لله أقدر عليك منك عليه" فالتفت فإذا هو رسول الله صلى الله عليه وسلم فقلت: يارسول الله! هو حر لوجه الله: فقال: "أما لو لم تفعل للفحتك النار أو لمستك النار".[1]

له ابو مسعود انصاري رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: زما يو مريی ؤ، ما واهه، زما د شاله پلوه مې غږ واورېد، چې "ابو مسعوده! په دې پوه شه ! ته چې په دې مريي څومره برلاسی يې، الله له دې زيات پر تابر لاسی دی" ماشاته وکتل، چې ګورم؛ رسول الله صلى الله عليه وسلم دی . ماورته وويل: ای د الله پېغمبره! دا مريی د الله لپاره ازاد دی. هغه وفرمايل: ؛ په دې پوه شه، چې که دا کار دې نه وای کړی، نو اور به سوځولی وې يا اوربه دررسېدلی ؤ".

په بل حديث کې داسې راځي:

[1]- رواه مسلم.

عن أبي بكر الصديق عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "لا يدخل الجنة سيئ الملكة". ۱

له ابو بكر صديق رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي، چې فرمايلي يې دي: " له غلامانو او وينځو سره بد اخلاقي كوونكى جنت ته نه ننوځي".

په بل حديث كې داسې راځي:

عن جابر عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "ثلاث من كن فيه يسرالله حتفه وأدخله جنته: رفق بالضعيف، وشفقة على الوالدين، وإحسان إلى المملوك". ۲

له جابر رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي، چې هغه فرمايلي دي: " درې كارونه دي، چې په چاكې وو، نو الله به يې ځنكدن آسان كړي او خپل جنت ته به يې ننباسي: له كمزوري سره نرمي كول، په مور او پلار باندې مهرباني او له مريي يا وينځې سره ښېګړه كول".

## د ښه كار لپاره د لوړې ماتول

دښه كار له كولو نه قسم اخيستل ناروا دي او كه چا له كوم كار نه قسم واخيست او بيا د قسم په ماتولو كې خير ؤ، نو قسم به مات كړي، كفاره به يې وركړي او هغه كاربه د قسم په خلاف وكړي.

---

[1] - رواه الترمذى وابن ماجه.

[2] - رواه الترمذي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "من حلف على يمين، فرأى خيرا منها ، فليكفر عن يمينه وليفعل".[۱]

له ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: " چا چې قسم (لوړه) وکړه او بيا يې له هغې ښه کار وليد ، نو د قسم کفاره دې ورکړي او هغه کار دې وکړي".

## قسم د مخاطب په نيت دی

دا روانه دي، چې قسم وکړې؛ خو ظاهر ترې مخاطب يو مطلب واخلي او ستا په زړه کې بل مطلب وي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "يمينك على مايصدقك عليه صاحبك".[۲]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "ستا قسم په هغه شان دی؛ څرنګه چې دې ملګری پرې ريښتينی ګڼي".

مطلب دا چې تاته څوک قسم درکوي او هغه ترې کوم مقصد اخلي؛ هماغسې دی، ستا د زړه ټکي ناسمه ده او پرې ګناهګارېږې.

[۱]- رواه مسلم.
[۲]- رواه مسلم.

په بل روایت کې داسې راځي:

عن أبی هریرة قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: "الیمین علی نیة المستحلف".۱

له ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "قسم د قسم ورکوونکي په نیت دی".

مطلب دا چې ته چاته قسم کوې او په ظاهر کې هغه تا په کومه خبره د قسم له کبله ریښتینی ګڼي او دهغه څرنګه نیت وي؛ هماغسې دی، که ستا په زړه کې بله وي، نو تا د قسم له ګناه نه شي ژغورلی. دمثال په توګه:

ته غوړي پلورې او چاته قسم وکړې، چې داکورني غوړي دي او دا زما د خپل کور دي، نو د دې ظاهري اړخ دا دی، چې دا سوچه دغوایامېښې یا مېږو اوزو حیواني غوړي دي، چې د شېدو او مستونه د کوچو په شکل را اوځي. که ستا په زړه کې دا وي، چې دا خو نباتي بناسپتي غوړي دي او د کورنیو مطلب دا، چې ماله خپله کوره راوړي دي، نو ته ګناهګار او حانث یې؛ په دې حیله له حنث نه نه بچ کېږې. نو اسلام د ټګۍ برګۍ او غولولو خلاف دی او په کلکه ترې منع کوي.

۱- رواه مسلم.

## مسلمان څوک دی ؟

اسلام غواړي، چې مسلمان به پرهېزګار، ریښتینی، خواخوږی، ټولنیز، مهذب او د ټولو ښوخویونو لرونکی وي. مسلمان هغه بولي، چې نور مسلمانان یې له ژبې او لاس له زیانه په امن وي.

په حدیث کې داسې راځي:

عن عبدالله بن عمرو رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده والمهاجر من هجر مانهى الله عنه". ۱

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "مسلمان هغه څوک دی، چې نور مسلمانان د هغه د ژبې او لاس له زیانه روغ پاتې وي او مهاجر هغه څوک دی، چې هغه څه یې پرېښودل، چې الله ورڅخه منع کړی دی".

په بل حدیث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده والمؤمن من أمنه الناس على دمائهم و أموالهم". ۲

له ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "مسلمان هغه څوک دی،

---

[۱] ـ رواه البخاری ومسلم.
[۲] ـ رواه الترمذی والنسائی والبیهقی.

چې مسلمانان يې د ژبې او لاس له زيانه روغ پاتې وي او مؤمن هغه ځوک د ی، چې خلک يې په خپلو وينو او مالونو أمين وګڼي".

د الله لپاره د دوستۍ او دښمنۍ په هکله بل حديث داسې راغلی دی:

عن معاذ أنه سأل النبى صلى الله عليه وسلم عن أفضل الإيمان قال: " أن تحب لله و تبغض لله و تعمل لسانك فى ذكر الله" قال: و ماذا يارسول الله! قال: " وأن تحب للناس ما تحب لنفسك و تكره لهم ما تكره لنفسك".[1]

له معاذ رضي الله عنه نه روايت دی، چې هغه له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه د غوره ايمان په هکله پوښتنه وکړه؛ هغه وفرمايل: " غوره ايمان دا دی، چې ته د نورو خلکو لپاره هغه څه خوښ کړې، چې د خپل ځان لپاره يې خوښوې او هغوي لپاره هغه څه بد وګڼې، چې د خپل ځان لپاره يې بد ګڼې".

## په نېکيو کې مرسته کول او له بديونه ځان ژغورل

اسلام خپلو پيروانو او منونکيو مؤمنانو او مسلمانانو ته امر کوي، چې د نېکيو او پرهېزګارۍ په کارونو کې يو تر بله سره مرسته وکړي او د ګناه او تېري په کارونو کې مرسته ونه کړي. اسلام د جاهلي تعصب غوندې نه دی، چې د ښواو بدو، انصاف او ظلم

[1]- رواه احمد.

توپیر به نه کوي او دژبې، رنګ، قوم، خېل، نسل او ډلې په بنسټونو په روا او ناروا ټولو کې له خپلو وګړو سره په تېري او ظلم کې ملا تړ وکړي؛ بلکه په ښېګړو کې په مرستې او د ظلم په مخنیوي امر کوي.

الله تعالی فرمايي:

"وَتَعَاوَنُواْ عَلَى الْبرِّ وَالتَّقْوَى وَلاَ تَعَاوَنُواْ عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ".[1]

" په ښېګړو او پرهېزګارۍ کې یو تر بله سره مرسته وکړئ او په ګناه او تېري کې یو تر بله سره مرسته مه کوئ".

همدارنګه اسلام خپلو معتنقینو ته حکم کوي، چې تل ښې او ښکلې دعدل، ښواخلاقو، ښې خبرې او سمې ریښتیا ویناوې کوي.

الله سبحانه وتعالی فرمايي :

"وَقُل لِّعِبَادِي يَقُولُواْ الَّتِي هِيَ أَحْسَنُ".[2]

" او زما بندګانو ته ووایه؛ هغه خبره کوي، چې هغه ډېره ښکلې وي".

او فرمايي :

"وَقُولُواْ لِلنَّاسِ حُسْناً".[3]

"او خلکو ته ښې ښکلې خبرې کوئ".

[1]- سورة المائدة: ۲.
[2]- سورة الاسراء: ۵۳.
[3]- سورة البقرة ۸۳.

## د ښېګړې مننه

په اسلام کې د احسان هېرول ډېر ناوړه عمل دی. اسلام امر کوي، چې چادرسره څه ښېګړه او احسان وکړ؛ د هغه مننه او شکر ادا کړه.

په حديث کې داسې راغلي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :

" من لم يشكر الناس لم يشكر الله". [١]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی، هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " چا چې د خلکو شکر ونه کړ؛ هغه د الله شکر نه دی کړی".

## ډالۍ درنده ګڼل

اسلام حکم کوي، چې چادرته څه ډالۍ درکړ ه، نو درنده يې وګڼه او سپکاوی يې مه کوه.

په حديث کې داسې راغلي :

[١] ـ رواه الترمذى وأحمد وأبويعلى والطبراني والطبري في تهذيب الآثار والبيهقي في شعب الإيمان وعبدالرزاق في مصنفه.و رواه البخاري في الأدب المفرد بلفظ:(لايشكرالله من لايشكرالناس).

عن أبي هريرة عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "تهادوا فإن الهدية تذهب وحرالصدر ولاتحقرن جارة لجارتها و لوشق فرسن شاة". ۱

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی، هغه له پېغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې ويې فرمايل: " تاسو يو تر بله په خپلو منځو کې يو بل ته ډالۍ ورکوئ ځکه، چې ډالۍ د سينې کينه له منځه وړي. او اګر که د پسه نيمه پښه هم وي؛ يوه ګاونډۍ دې د خپلې بلې ګاونډۍ ډالۍ سپکه نه ګڼي".

## درې ښه کارونه

د اسلام له ښو کارونو او ګټورو احکامو نه دا لاندې درې کارونه هم دي، چې په حديث کې داسې راغلي دي:

عن أبي موسىٰ قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "أطعموا الجائع وعودوا المريض و فكوا العانى". ۲

له ابو موسىٰ رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: " وږي ته خواړه ورکړئ، د ناروغ پوښتنه وکړئ او بندي را ازاد کړئ ".

---

۱- رواه البخاري ومسلم والترمذى واللفظ له وأحمد والبزار والطيالسي والبيهقي والطبراني.

۲- رواه البخا رى.

# د پرنجي په وخت کې

د اسلام له آدابو نه يوادب دا هم دی، چې کله چا پرنجی وکړ، نو (الحمد لله) به وايي، اورېدونکی به ورته (يرحمك الله) وايي او پرنجي كوونكی به بيا ورته وايي:

(يهديكم الله ويصلح بالكم).

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :

" إذا عطس أحدكم فليقل (الحمد لله) وليقل له أخوه أوصاحبه: (يرحمك الله) فإذا قال له يرحمك الله، فليقل: (يهديكم الله ويصلح بالكم) [1]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: " كله چې په تاسو كې ثوک وپرنجيد، نو (اَلْحَمْدُ لله) دې ووايي او د هغه ورور يا ملګری دی ورته (يَرْ حَمْك الله) ووايي، كله چې هغه ورته (يَرْ حَمْكَ الله) وويل، نو دی دې ورته ووايي: (يَهْدِ يْكُمُ الله وَيُصْلِحْ بَالَكُمْ).

۱ - (اَلْحَمْدُ لله): ټولې كره پوره ستاينې الله لپاره دي.

۲ - (يَرْحَمْكَ الله): الله دې په تا رحم وكړي.

۳ - (يَهْدِيْكُمُ الله وَيُصْلِحْ بَالَكُمْ): الله دې تاسو ته هدايت وكړي او ستاسو حال دې سم كړي.

[1] - رواه البخاری والترمذی وابو داود والدارمي.

همدارنګه دپرنجي په وخت کې بل ادب دادی، چې چاته مخامخ یا په دسترخوان او لوښو کې پرنجېدل منع دي، له پرنجي سره له خولې او پوزې نه د راوتونکو بڅرکو د خپرېدو او ککړتیا د مخنیوي لپاره باید خوله په څه شي بنده او مخ واړول شي.

په حدیث کې داسې راغلي:

عن أبي هريرة: أن النبى صلى الله عليه وسلم كان إذا عطس غطى وجهه بيده أو ثوبه وغض بها صوته.۱

له ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی، چې پېغمبر صلی الله علیه وسلم به چې کله پرنجېده، نو خپل مخ به یې په لاس یاجامه پټ او غږ به یې پرې ټیټ کړ.

## د خوله وازي په وخت کې

د اسلام له کره او پاکو بنسټونو او آدابو نه بل ادب دا دی، چې کله خوله وازی کوې، نو دښې لاس شا یامخ په خوله کېږده.

په حدیث کې داسې راغلي:

عن أبي سعيدالخدرى أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "إذا تثاءب أحدكم فليمسك بيده على فمه فإن الشيطان يدخل".۲

---

[1]- رواه الترمذى وأبوداود والحاكم في المستدرك.

[2]- رواه البخاري في الأدب المفرد ومسلم وأبوداود والترمذي وأحمد وابن خزيمة والدارمي وابن حبان والحميدي والبيهقي في شعب الإيمان وأبويعلى.

له ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: " کله چې په تاسو کې چا خوله وازی کاوه، نو خپل لاس دې په خپله خوله کېدي ځکه، چې شيطان پکې ننوځي".

د خوله وازي په وخت کې د خولې په پټولو کې ډېرې ګټې دي ځکه چې که خوله وازه شي، نو شيطان پکې ننوځي، د ګردونو، مچانو، ماشو يا نورو حشراتو او جراثيمو د ننوتو خطر شته او خوله هم بده برېښي، نو په پټولو له دې ټولو خطرونونه ساتل کېږي.

## د ناوړه نوم بدلول

د اسلام له آدابو داهم دی، چې په ماشومانو به ښه نوم اېښودل کېږي. که په چا د ناپوهۍ له امله ناوړه نوم اېښودل شوی ؤ، نو هغه به بدلېږي.

په حديث کې داسې راځي:

عن عائشة رضی الله عنها قالت: " إن النبی صلی الله عليه وسلم کان يغير الإسم القبيح". ۱

له عائشې رضی الله عنها نه روايت دی، چې " پېغمبر صلی الله عليه وسلم به ناوړه نوم بدلاوه".

په بل حديث کې داسې راځي:

---

۱- رواه الترمذی.

عن أبي هريرة رضى الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "أخنى الأسماء يوم القيامة عندالله رجل يسمى ملك الأملاك ".[۱]

له ابوهريرة رضى الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " د قيامت په ورځ له الله سره تر ټولو ناوړه نوم دهغه سړي دى، چې د پاچايانو پاچا (شاهنشاه) نومېږي".

په بل حديث کې د نوم د بدلولو په هکله داسې راغلي دي:

عن شريح بن هانئى عن أبيه أنه لما وفد إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم مع قومه سمعهم يكنونه بأبى الحكم، فدعاه رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: " إن الله هو الحكم و إليه الحكم، فلم تكنى أبا الحكم؟" قال: إن قومي إذا اختلفوا فى شئ أتوني فحكمت بينهم فرضى كلا الفريقين لحكمى فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "ماأحسن هذا فمالك من الولد؟" قال: لي شريح ومسلم و عبدالله قال: " فمن أكبرهم؟ " قال: قلت: شريح. قال: " فأنت أبوشريح".[۲]

شريح بن هانئ له خپل پلار نه روايت کوي، چې هغه کله دخپل قوم له خلکو سره رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغى، نو وايې وریدل چې خلکو ورته أبوالحکم وايه، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم راوغوښت او ورته ویې فرمـــــايل: "(حکم) يواځې الله

---

[۱]- رواه البخارى ومسلم.
[۲]- رواه ابو داود والنسائى.

دی او حکومت يوائې دهغه دی، نو ته ولې أبوالحکم بلل کېږې؟".
هغه وويل: کله به چې زما د قوم د خلکو تر منځ په څه شي کې اختلاف پيدا شو، نو ماته به راغلل؛ ما به د هغوی په منځ کې پرېکړه وکړه او دواړه ډلې به زما په پرېکړه راضي شوې. رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "دا څومره ښه کاردی، آيا ستا زامن شته؟". هغه وويل: زما زامن شريح، مسلم او عبدالله دي. هغه وفرمايل: "په هغوی کې مشر کوم يو دی؟" هغه وايي: ما ورته وويل: شريح يې مشر دی. هغه وفرمايل: نو ستا کُنيه نوم: ابو شريح شو".

## امر بالمعروف او نهی عن المنکر

د دې لپاره، چې بشري ټولنه د امن، سوکالۍ او نېکمرغۍ ژوند وکړي او له هر ډول ورانکارۍ، بدکارۍ او فساد نه پاکه وي؛ اسلام خپلو منونکيو ته حکم کوي، چې خلک د هر ډول ښوکارونو او ښېګڼو کولو ته راوبلي او له هر ډول بدکارۍ او فساد نه يې منع کړي. که دانه وي او انسانان بې بريده او بې بنديزه پرېښودل شي، نو په ځمکه کې به فساد، ظلم اوتېري خپور شي.
الله تعالی فرمايي:
"وَلَوْلاَ دَفْعُ اللّهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الأَرْضُ وَلَـكِنَّ اللّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِينَ".[۱]

---

[۱]- سورة البقرة: ۲۵۱.

"او کـه د الله د ځينـو خلکـو پـه ځينـو ايسـارول نـه واى، نـو ځمکه به هرو مرو فاسده شوې وه؛ خو الله په ټولو خلکو د ښېګړې څښتن دى".

نو دا له انسانانو سره د الله يوه لويه ښېګړه ده، چې خپلو بندګانو ته حکم کوي، چې په نيکيو به امر کوئ او له بديو به منع کوئ.

او فرمايي:

"وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَأُولَـئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ".[1]

" او له تاسو نه دې هرو مرو يوه داسې ډله جوړه شي، چې خير ته خلک رابلي، په نېکيو امر کوي او له بديو منع کوي او همدوى بريالي دي".

او فرمايي:

"كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللّهِ".[2]

" تاسو هغه غوره امت ياست، چې د خلکو لپاره ايستل شوى دى؛ په نېکيو به امر کوئ، له بديو به منع کوئ او په الله به ايمان راوړئ".

او د مؤمنانو په کره ځانګړتياؤ کې دا هم ګڼي چې:

---

[1]- سورة آل عمران: ١٠٤.
[2]- سورة آل عمران: ١١٠.

"يُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَأُوْلَـئِكَ مِنَ الصَّالِحِينَ".[1]

"په الله او د قيامت په ورځ ايمان راوړي، په نېکيو امر کوي، له بديو منع کوي، د ښېګړو په کارونو کې يو تر بله بيړه کوي او دوی له نېکانو څخه دي".

اوفرمايي:

"لَوْلاَ يَنْهَاهُمُ الرَّبَّانِيُّونَ وَالأَحْبَارُ عَن قَوْلِهِمُ الإِثْمَ وَأَكْلِهِمُ السُّحْتَ لَبِئْسَ مَا كَانُواْ يَصْنَعُونَ".[2]

"نېکانو او عالمانو ولې هغوی د ګناه له وينا او د حرامو له خوړلو نه منع کول؟ هغوی چې څه کول ډېر بد يې کول".

اوفرمايي:

"لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُواْ مِن بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَى لِسَانِ دَاوُدَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذَلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُواْ يَعْتَدُونَ كَانُواْ لاَ يَتَنَاهَوْنَ عَن مُّنكَرٍ فَعَلُوهُ لَبِئْسَ مَا كَانُواْ يَفْعَلُونَ".[3]

"د بني اسرائيلو کافران د داود، او د مريم د زوی عيسی په ژبه په لعنت شوي دي؛ دا له دې امله، چې هغوی سرغړونه کوله او تېری يې کاؤه. هغوی په خپلو منځو کې يو بل له هغو بدوڅخه نه منع کول، چې کول يې. هغوي چې څه کول؛ ډېر بد يې کول".

او د منافقانو په هکله فرمايي:

[1]- سورة آل عمران: ١١٤.
[2]- سورة المائدة: ٦٣.
[3]- سورة المائدة: ٧٨- ٧٩.

"الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ بَعْضُهُم مِّن بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمُنكَرِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوفِ".[1]

"منافقان سړي او منافقاني ښځې يو تر بله سره ملګري دي؛ په بديو امر کوي او له نيکيو منع کوي".

د مؤمنانو ښه خويونه داسې راپه ګوته کوي:

"وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ الصَّلاَةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَيُطِيعُونَ اللّهَ وَرَسُولَهُ أُوْلَـئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللّهُ إِنَّ اللّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ".[2]

"مؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې په خپلو منځو کې يو تر بله سره دوستان دي، په نېکيو امر کوي، له بديو منع کوي، لمونځ کوي، زکات ورکوي او دالله او د هغه د پېغمبر مني. دوی باندې به الله رحم وکړي؛ الله بې شکه غالب او د حکمت څښتن دی".

اوفرمايي:

"الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ".[3]

"هغه خلک، چې که مونږ ورته په ځمکه کې حکومت ورکړ، نو لمونځ کوي، زکات ورکوي، په نېکيو امر کوي او له بديو منع کوي او د ټولو کارونو پايلې د الله لپاره دي".

نو د امر بالمعروف او نهی عن المنکر اهميت په اسلام کې ډېر زيات دی او بيا نهی عن المنکر تر ټولو زيات اهميت لري؛

---

[1]- سورة التوبه: ٦٧.

[2]- سورة التوبه: ٧١.

[3]- سورة الحج: ٤١.

ځکه چې له بديو منع نه شي، نو نېکي يې اوبه وړي. دمخکنيو قومونو د هلاکت سبب هم داؤ، چې هغوی له بديو څخه نه منع کېدل او له عذاب څخه يواځې هغه خلک وژغورل شول، چې نهی عن المنکر يې کاوه.

الله تعالی فرمايي:

"فَلَمَّا نَسُواْ مَا ذُكِّرُواْ بِهِ أَنجَيْنَا الَّذِينَ يَنْهَوْنَ عَنِ السُّوءِ وَأَخَذْنَا الَّذِينَ ظَلَمُواْ بِعَذَابٍ بَئِيسٍ بِمَا كَانُواْ يَفْسُقُونَ فَلَمَّا عَتَوْاْ عَن مَّا نُهُواْ عَنْهُ قُلْنَا لَهُمْ كُونُواْ قِرَدَةً خَاسِئِينَ".[۱]

"کله يې چې هغه څه هېر کړل، په څه شي چې نصيحت ورته شوی ؤ، نو هغه خلک مو وژغورل، چې له بديو نه يې منع کوله. او ظالمان مو له دې امله په نهيلي کوونکي عذاب ونيول، چې هغوی ګناوې کولې؛ کله يې چې له هغه بريده تېری وکړ، چې ترې منع شوي وو، نو ورته مووېل چې خوارې بيزوګانې شئ".

په احاديثو کې د امر بالمعروف او نهی عن المنکر په هکله داسې راځي:

عن أبی سعيد الخدری عن رسول الله صلی الله عليه وسلم قال: " من رأیٰ منکم منکرا فليغيره بيده فإن لم يستطع فبلسانه فإن لم يستطع فبقلبه و ذلك أضعف الإيمان".[۲]

له ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی هغه له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې فرمايلي يې

---

[۱]- سورة الاعراف: ۱۶۵- ۱۶۶.
[۲]- رواه مسلم.

دي: " په تاسو کې چې چاکوم ناوړه کار وليد ، نو په لاس دې يې منع کړي، که د لاس وس يې نه ؤ، بيا دې يې په ژبه منع کړي او که د ژبې وس يې هم نه ؤ، نو په زړه دې يې منع کړي او دا د ډېر کمزوري ايمان والا دی".

د زړه منع کول يوائې دانه دي، چې په زړه کې ورڅخه کرکه وکړي؛ بلکه د زړه د کرکې نښې بايد د هغه په مخ او سلوک کې څرګندې شي؛ ځکه چې دا ټول په (فليغيره بيده) عطف دي، نو په زړه منع کول مطلوب دي او يوائې کرکه نه ده. منع کول دا دي، چې د زړه د کرکې نښې بايد دمنکر مرتکب ووينې او پرې پوه شي.

په بل حديث کې داسې راځي:

عن النعمان بن بشير قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "مثل المداهن فى حدودالله والواقع فيها مثل قوم إستهموا سفينة فصاربعضهم فى أسفلها وصار بعضهم فى أعلاها ؛ فكان الذى فى أسفلها يمر بالماء على الذين فى أعلاها فتأذوا به فأخذ فأسافجعل ينقر أسفل السفينة فأتوه فقالوا: مالك؟ قال: تأذيتم بي ولا بدلى من الماء، فإن أخذوا على يديه أنجوه ونجوا أنفسهم و إن تركوه أهلكوه وأهلكوا أنفسهم".[1]

له نعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " د الله په بريدونو کې د بې غورۍ والاو په هغو کې د تېري کوونکيو مثال دهغو خلکو په څېر دی، چې په يوې بېړۍ يې پچه واچوله، نو ځينې خلک يې په

---

[1]- رواه البخارى.

لاندې چت کې شول او ځيني يې په پاسني کې؛ کوم خلک چې په لانديني چت کې دي؛ د اوبو د راوړلو په وخت کې په پاسنيو باندې تېرېږي او هغوی په دې کار تنګېږي؛ نو له لاندې خلکو نه يو يې تبر را واخلي او د بېړۍ لانديني برخه پرې سورۍ کوي؛ پاسني خلک ورته راشي او ورته وايي، چې ولې دا کار کوې؟ هغه وايي: تاسو په ما تنګ شوئ او ماته خامخا اوبه په کار دي؛ که هغوی د دغه کس لاسونه ونيول او منع يې کړ، نو هغه به هم له ډوبېدو وژغوري او خپل ځانونه هم. او که پرې يې ښود، نو هغه يې هم هلاک کړ او خپل ځانونه هم".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن حذيفة أن النبى صلى الله عليه وسلم قال: " والذى نفسي بيده لتأمرن بالمعروف و لتنهون عن المنكر أو ليوشكن الله أن يبعث عليكم عذابا من عنده ثم لتدعنه ولايستجاب لكم".[1]

له حذيفه رضي الله عنه نه روايت دی، چې پېغمبرصلی الله عليه وسلم وفرمايل: " په هغه ذات لوړه کوم، چې زما ځان د هغه په لاس کې دی، چې تاسو به خامخا په نېکيو امر کوئ او له بديو به منع کوئ او يا نږدې ده، چې الله په تاسو له خپله پلوه عذاب را ولېږي؛ بيا به يې هرو مرو رابلۍ او دعاء به مو نه قبلېږي".

ځينې خلک دا ښه ګڼي، چې د چا په کار کې کار نه لري. که څوک ښه کوي او که بد؛ دی ورته څه نه وايي. دا بېخي ناسمه ده. مسلمان د خلکو په کار کې د سمون لپاره کار لرلو باندې

[1]- رواه الترمذى.

ګمارل شوی دی او دې سمون ته ( نهی عن المنکر ) ( له بديو نه منع کول ) وايي.

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبي بکرالصديق قال: يا أيها الناس! إنکم تقرء ون هذه الآ ية: "ياأيها الذين ءامنوا عليکم أنفسکم لايضرکم من ضل إذا هتديتم" فإنى سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: "إن الناس إذا رأوا منکرا فلم يغيروه، يوشك أن يعمهم الله بعقابه".[1]

له ابو بکر صديق رضي الله عنه نه روايت دی هغه وويل: ای خلکو! تاسو دا آيت لولئ چې: " ای مؤمنانو! په تاسو باندې خپل ځان ته پاملرنه اړينه ده؛ کله چې تاسو په سمه لار وئ، نو هغه څوک درته زيان نه شی رسولی، چې بې لارې شوی دی " ( تاسو له دې غلط مطلب اخلئ) ځکه، چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: "خلک چې کله ناوړه کار ووينې او منع يې نه کړي، نو نږدې ده، چې الله په ټولو عذاب راولېږي".

اسلام د ټولو ښو کارونو او ښېګړو په کولو امر کوي او له ټولو بدو کارونو او ناوړه اعمالو څخه منع کوي.

د انساني ټولنې او د نړۍ د ودانۍ، ښېرازۍ او نېکمرغۍ رازونه په همدې دوه بنسټونو ولاړ دي، چې د خېر ښېګړې ټول کارونه پلي شي او بد او ناوړه کارونه ورک شي، نو په نړۍ کې به امن، سوکالي، ودانې او پرمخ تلل وي؛ جنګونه او جګړې به نه وي، هر ډول ظلم ،تېری او فساد به ورک شي، هرچاته به خپل حق

[1]- رواه الترمذى و أبوداود وابن ماجه.

ورکول شي، انسانان به سره ورونه ورونه او خواخوږي شي، دښمني به په دوستۍ بدلې شي او تولې بدمرغۍ به له منځه لاړې شي.

## ښه او بد پېژندل

ښه او بد په سالم ذوق او انصاف کولو پېژندل کېږي اواسلام تول را په ګوته کړي دي.

په حديث کې د نېکۍ او ګناه توپير داسې شوی دی:

عن النواس بن سمعان قال: سألت رسول الله صلى الله عليه وسلم عن البر والإثم فقال: " البر حسن الخلق والإثم ما حاك فى صدرك وكرهت أن يطلع عليه الناس". ١

له نواس بن سمعان رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دنېکۍ او ګناه په هکله پوښتنه وکړه، نو هغه وفرمايل: " نېکي ښه اخلاق دي اوګناه هغه ده، چې په زړه کې دې پکې شک شو او دادې بده ګڼله، چې خلک پرې خبر شي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن عبدالله بن عمرو قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : ؛ إن من أحبكم إلى أحسنكم أخلاقا ؛. ٢

---

[1]- رواه مسلم.
[2]- رواه البخارى.

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " په تاسو کې هغه څوک ماته ډېر ګران دی، چې هغه په تاسو کې د ښو اخلاقو څښتن وي".

## ځينې منکرات

د نيکو کارونو څه بېلګې مو مخکې يادې کړې او رښا مو پرې واچوله. اوس منکرات (ناوړه کارونه) بايد وپېژنو؛ ځکه چې له ناوړه کارونو څخه ځان ژغورل خپله نېکيو ته مخه کول دي.
ناوړه کارونه ټول هغه کارونه دي، چې بشري ټولنې ته پټ او ښکاره، ظاهري او معنوی، د صورت او سيرت تاوان او زيان رسوي او د انساني چاپېريال د ظاهري او معنوي ککړتيا او ناوړتيا لامل ګرځي. او د دې ټولو بنسټ د الله سبحانه وتعالی له احکامو نه سرغړونه ده.
په اسلام کې تر ټولو ستر منکر کفر او شرک دی، چې د الله تعالی په ذات يا صفتونو يا نومونو او احکامو کې له ټولو يا ځينو نه انکار وکړې، يا له هغه سره په ذات، صفاتو، افعالو، نومونو او عبادت کې څوک شريک وګڼې، يا د الله تعالی د عبادت په ډولونو کې د کوم ډول په مخلوق کې چاته ورکړې.....
دا لوی او سرور بحث دی او ګڼ کتابونه پرې ليکل شوي دي. زمونږ کتاب: ( توحيد رڼا او شرک تياره دي) هم په دې هکله لوستلی شئ.

له څرګند کفر او شرک او پټ (نفاق) نه وروسته او د لمانځه، روژي، زکات، حج او نورو احکامو له انکار اوپرېښودلو نه وروسته هغه کارونه، چې فرد او ټولنې ته زيان رسوي او د نړۍ او بشري چاپيريال د ککړتيا او ناوړتيا لاملونه جوړېږي په لاندې کرښو کې يادوو:

## فساد

اسلام د هر ډول فساد او ورانکارۍ مخنيوى کوي، خپل منونکي ترې منع کوي او نړۍ ترې ژغوري.

الله تعالى فرمايي:

"وَلاَ تُفْسِدُواْ فِي الأَرْضِ بَعْدَ إِصْلاَحِهَا".[1]

"اوپه ځمکه کې د هغې له رغونې او اصلاح نه وروسته فساد او ورانکاري مه کوئ".

د ورانکاري او منافق په هکله فرمايي:

"وَإِذَا تَوَلَّى سَعَى فِي الأَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيِهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ وَاللّهُ لاَ يُحِبُّ الفَسَادَ".[2]

" کله چې شا کړي، نو هڅه کوي، چې په ځمکه کې ورانکاري وکړي او کښتونه او نسلونه هلاک کړي. او الله ورانکاري نه خوښوي".

د منافقانو په هکله فرمايي:

---

[1]- سورة الاعراف: ٥٦.
[2]- سورة البقرة: ٢٠٥.

"وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ لاَ تُفْسِدُواْ فِي الأَرْضِ قَالُواْ إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ أَلا إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ وَلَـكِن لاَّ يَشْعُرُونَ".[1]

" کله چې دوی ته وويل شي، چې په ځمکه کې ورانکاري مه کوئ، نو هغوی وايي: مونږ خو يوائې رغوونکي يوو، خبردار! همدوی ورانکاران دي؛ خو نه پوهېږي".

او فرمايي:

"وَلاَ تَعْثَوْاْ فِي الأَرْضِ مُفْسِدِينَ".[2]

" او په ځمکه کې ورانکاري مه کرځئ".

او فرمايي:

"وَلاَ تَبْغِ الْفَسَادَ فِي الأَرْضِ إِنَّ اللّهَ لاَ يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ))[3]

" او په ځمکه کې فساد مه غواړه؛ الله بې شکه فساد کوونکي نه خوښوي".

## ناحقه وژنه

اسلام په ناحقه د چا وژنه کبيره ګناه ګڼي، غندي يې، په کلکه يې مخنيوی کوي او په سختۍ يې منع کوي.

الله تعالی فرمايي:

"وَلاَ تَقْتُلُواْ أَنفُسَكُمْ إِنَّ اللّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا".[4]

---

[1]- سورة البقرة: ۱۱- ۱۲.
[2]- سورة هود: ۸۵.
[3]- سورة القصص: ۷۷.
[4]- سورة النساء: ۲۹.

" په خپلو منځو کې يو بل مه وژنئ؛ الله بې شکه په تاسو خورا زيات لورونکی دی".

او فرمايي:

"وَلاَ تَقْتُلُواْ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللّهُ إِلاَّ بِالْحَقِّ".[1]

" له حق پرته هغه څوک مه وژنئ، چې الله حرام کړی دی".

او فرمايي:

"مَن قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا".[2]

" چا چې بې بدله، يا په ځمکه کې د ورانکارۍ لپاره څوک وواژه، نولکه چې ټول خلک يې ووژل. او چاچې يو نفس ژوندی کړ، نو لکه چې ټول خلک يې ژوندي کړل".

او د مؤمنانو او نېکانو په ښو صفتونو اوکره ځانګړتياو کې فرمايي:

"وَلاَ يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلاَّ بِالْحَقِّ".[3]

" او (نېکان بندګان) په ناحقه هغه نفس نه وژني، چې الله حرام کړی دی".

---

[1]- سورة الانعام: ۱۵۱.
[2]- سورة المائدة: ۳۲.
[3]- سورة الفرقان: ٦٨.

## قاتل ميراث نه وړي

په اسلام کې د جرمونو د مخنيوي له حکمونو او حکمتونو څخه دا هم دی، چې چا کوم نږدې خپلوان وواژه، نو هغه د مقتول له مال څخه ميراث نه وړي.

په حديث کې داسې راغې:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "القاتل لايرث".[۱]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "وژونکی ميراث نه وړي".

## زنا

اسلام د نارينه او ښځينه په منځ کې د نکاح حلال اړيکې ټينګوي، د ښځې او مېړه کور جوړوي او د دې لپاره يې خپل بنستونه او بريدونه ټاکلي دي:

خو ناروا د زنا اړيکې کبيره ګناه ګڼي، په کلکه يې مخنيوی کوي، غندي يې او په سختۍ او ټينګار يې منع کوي.

الله تعالى فرمايي:

"وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَى إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاء سَبِيلاً".[۲]

---

[۱]- رواه الترمذي وابن ماجه.

[۲]- سورة الاسراء: ۳۲.

"او زنا ته مه نږدې کېږئ؛ دا بې شکه څرګنده ګناه او ناوړه لار ده".

د مؤمنانو په ښو صفتونو او کره ځانګړتياو کې فرمايي:

"وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ إِلاَّ عَلَى أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ فَمَنِ ابْتَغَى وَرَاء ذَلِكَ فَأُولَئِكَ هُمُ الْعَادُونَ".[1]

"او هغه (مؤمنان بريالي دي) چې هغوی له خپلو ښځو او وينځو نه پرته د خپلو عورتونو ساتونکي وي ، د ښځو او وينځو په هکله دوی ملامت نه دي او چا چې له دې اخوا نور څه ولټول، نو همغوی تېری کوونکي دي".

(وراء ذلك) کې لواطت، د لاس استعمال، له حيواناتو سره بدکاري او نورې ټولې بدې لارې داخلې دي، چې دا ټولې منع دي او کبيره ګناه ده، يوازې له خپلو حلالو نکاح شويو ښځو يا وينځو سره جنسي اړيکې ساتل روا دي، او له دې پرته نور ټول ناروا دي.

همدارنګه د مؤمنانو او نېکانو په کره ځانګړتياؤ کې فرمايي:

"ولا يزنون".[2]

" او (د رحمن ذات بنده ګان) زنا نه کوي".

---

[1]- سورة المؤمنون: ٥- ٧.
[2]- سورة الفرقان: ٦٨.

# بچه بازي

په اسلام کې د نارينه له نارينه سره جنسي اړيکې لرل او بچه بازي ډېر ناوړه، چټل، بې غيرته او ناروا کار او ډېره لويه ګناه ده. الله تعالی د لوط عليه السلام قوم د همدې بد عمل له کبله په سخت عذاب هلاک کړی ؤ، چې سترګې يې ړندې شوې، يوه ډېره سخته لړزوونکې کړيکه پرې وشوه، ځمکه يې پرې تر اسمانه پورته کړه، پر بل مخ يې پرې په سخت ضرب رانسکوره کړه او د پرخينو ډبرو باران يې پرې وکړ. الله تعالی فرمايي:

"وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ أَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ مَا سَبَقَكُم بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِّن الْعَالَمِينَ إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّن دُونِ النِّسَاءِ بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُونَ" سورة الاعراف: ۸۰ – ۸۱.

"او لوط د پاملرنې وړ دی، چې کله يې خپلو خلکو ته وويل: آيا تاسو (د بچه بازۍ) بې شرمه کار کوئ؟ له تاسې وړاندې په ټولو خلکو کې هيچا دا کار نه دی کړی. تاسو بې شکه له ښځو پرته نارينه و ته په شهوت راتلل کوئ؛ تاسو خو ډېر زياتي کوونکي وګړي ياست".

دلته له (الرجال) نه نارينه مراد دي، چې لويان وي او که واړه؟ ځکه چې په بل ځای کې فرمايي:

"أَتَأْتُونَ الذُّكْرَانَ مِنَ الْعَالَمِينَ وَتَذَرُونَ مَا خَلَقَ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِنْ أَزْوَاجِكُم بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ عَادُونَ" سورة الشعراء: ۱۶۵ – ۱۶۶.

" آيا تاسو له خلکو څخه نارينه و ته په شهوت راتلل کوئ او خپلې هغه ښځې پرېږدئ، چې تاسو لپاره ستاسو رب پيدا کړې دي!؟ تاسو خو ډېر له بريده تېرېدونکي خلک یاست".

د دې ناولي او ناوړه عمل له کبله الله تعالی په داسې سخت عذاب هلاک کړل، چې په تاريخ کې يې ساری نشته. الله تعالی فرمايي:

"فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُشْرِقِينَ فَجَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ" سورة الحجر ۷۳ – ۷۴.

" د لمرخاته په وخت کې دوي سختې کړيکې ونيول، نو مونږ د هغه کلي پاسنۍ برخه لاندې کړه او د پرخينو ډبرو باران موپرې وکړ".

په بل ځای کې فرمايي:

"فَلَمَّا جَاء أَمْرُنَا جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ مَّنضُودٍ" سورة هود: ۸۲.

" کله چې زمونږ عذاب راغی؛مونږ يې پاسنۍ ځمکه لاندې کړه او د جوختو جوختو پرله پسې پرخينو ډبرو باران موپرې وکړ".

او فرمايي:

"إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا إِلاَّ آلَ لُوطٍ نَّجَّيْنَاهُم بِسَحَرٍ نِّعْمَةً مِّنْ عِندِنَا كَذَلِكَ نَجْزِي مَن شَكَرَ وَلَقَدْ أَنذَرَهُم بَطْشَتَنَا فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ وَلَقَدْ رَاوَدُوهُ عَن ضَيْفِهِ فَطَمَسْنَا أَعْيُنَهُمْ فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ وَلَقَدْ صَبَّحَهُم بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ" سورة القمر: ۳۴ – ۳۹.

" مونږ بې شکه پر هغوی د ډبرو باران ولېږه؛ خو د لوط کهول مو د پېشنمې په وخت کې وژغوره؛ دا زمونږ له لوري پېرزوینه وه،چا چې شکر وکړ؛ مونږ همداسې بدله ورکوو. لوط هغوی زمونږ له سختو

نيولو څخه وېرولي وو؛ خو هغوی په وېرولو کې شک کړی و. هغوی له لوط نه د هغه د مېلمه په هکله ناوړه غوښتنه کړې وه، نو مونږ د هغوی سترګې چخړيتې کړې،(او ورته و مو ويل:) اوس نو زما عذاب او وېرول وڅکئ. هغوی ته سهار وختي ځای نيوونکی عذاب راغی. نو زما عذاب او وېرول وڅکئ".

بچه بازي او نارينه و سره جنسي اړيکې ساتل څومره لويه ګناه ده!؟.. په ا سلام کې د بچه بازۍ سزا وژل دي ، که واده کړی وي او که ناواده وي، که فاعل وي او که مفعول وي؛ هغه به تر مړينې په ډبرو ويشتل کېږي او وژل کېږي.

په حديث کې داسې راځي:

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "من وجدتموه يعمل عمل قوم لوط فاقتلوا الفاعل والمفعول به"[1]

"که تاسو داسې څوک وموندل، چې د لوط(عليه السلام) د قوم عمل يې کاوه، نو فاعل او مفعول دواړه ووژنئ".

د ابن ماجه، حاکم او ابو يعلی په روايت کې راځي چې"ارْجُمُوا الْأَعْلَى وَالْأَسْفَلَ ، ارْجُمُوهُمَا جَمِيعًا."

" پاسنی او لاندينی دواړه سنګسار کړئ، دواړه په يو ځای سنګسار کړئ".

د نسائي ،احمد ، حاکم، ابن حبان، طبراني، ابويعلی او بيهقي يو روايت داسې راغلی دی:

---

١ـ رواه أبوداود والترمذي واحمد والدارقطني والحاكم والبيهقي في السنن وشعب الايمان والطبراني والبزار و ابويعلى والطحاوي.

عَنِ ابْنِ عَبّاسٍ ، أنّ رَسُولَ الله صَلّى اللّهُ عَلَيْه وَسَلّمَ : قَالَ : "لَعَنَ اللّهُ مَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ ، لَعَنَ اللّهُ مَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ ، لَعَنَ اللّهُ مَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ".

له عبدالله بن عباس رضى الله عنهما نه روايت دى،چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "چا چې د لوط د قوم عمل وکړ؛ الله دې يې په لعنت کړي، چا چې د لوط د قوم عمل وکړ؛ الله دې يې په لعنت کړي، چا چې د لوط د قوم عمل وکړ؛ الله دې يې په لعنت کړي".

## غلا

اسلام ددې لپاره راغلی دی، چې د خلکو دين، ځان، مال، عقل او پت عزت خوندي شي. په اسلام کې په پټه دچامال وړل او غلا کول حرام دي. او د غلا د مخنيوي لپاره په اسلام کې د لاس پرې کول دي.

الله تعالى فرمايي:

"وَالسّارِقُ وَالسّارِقَةُ فَاقْطَعُواْ أَيْدِيَهُمَا جَزَاء بِمَا كَسَبَا نَكَالاً مِّنَ اللّهِ وَاللّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ"[1]

"د غله او غلې لاسونه پرې کړئ؛ دا د هغه ناوړه عمل سزا ده، چې دوی کړې دی. دا د الله له پلوه دغلا د مخنيوي لپاره سزا ده او الله غالب او د حکمت څښتن دی".

[1]- سورة المائدة: ۳۸.

په اسلام کې د انسان لاس دومره محترم او قیمتی د ی، چې کله امین وي او چایې یوه ګوته پرې کړه، نو لس اوښان به په دیت کې ورکوي او د بشپړلاس دیت پنځوس اوښان دي. خو چې کله دا لاس خائن شو او غلا يې وکړه، نو بیا د دینار په څلورمې برخې غلا کې غوځېږي. دا ځکه چې مخکې پنځوس اوښان د لاس د ساتلو لپاره وو او بیا د لاس غوځول د دینار د څلورمې برخې قیمت نه دی، بلکه دا د انساني او اسلامي ټولنې د امنیت او اموالو د ساتلو قیمت دی؛ خو د لاس غوځول او د حدودو نفاذ به هله کېږي، چې د اسلام سیاسي، اقتصادي، اجتماعي او پوره بشپړ نظام نافذ وي. که دا نه وي، نو بیا یوائې حدود نافذول او نور اسلام شاته غورځول ظلم دی. اسلام لومړی اقتصادي نظام نافذوي، په دې ځمکې کې انسان بې پاسپورټه او بې وېزې ازاد دی، چې هر ځای بې مالکه شاړه ځمکه ودانوي؛ د هغه ده، حلال تجارت کې ازاد دی، د ځمکې په زېرمو، لکه: تېلو، ګاز، سرو او سپینو، کانو، ځنګلونو ، وښو، اور او اوبو، کې ټول یو ډول شریکان دي، بیت المال کې د هرچا مساوي برخه ده ..... مالدار به بې وزلو ته زکات ورکوي، ټګي برګي، دروغ، احتکار (قیمتۍ کې د غلو دانو زېرمه کول)، ظلم، تېری او هر ډول نا انډولي او حق تلفي منع دي.

اوس نو ووایه، چې کله د اسلام دغه ډول اقتصادي نظام نافذ شي؛ آیا څوک به غلا وکړي؟ هېڅکله نه.

دا چې طاغوتي د ظلم قوانین نافذ وي، هر لوري ته چې خوځېږي ټکس وي، په شاړو ځمکو کې له برخې محروم وي، په

کانونو، معدنونو او د ځمکې په زېرمو کې له برخې محروم وي، بې پاسپورټه، بې ويزې او بې ټکسه تجارت او مزدوري نه شي کولی، مالدار په سودي بانکونو کې بې خرته مالونه جمع کوي او د بې وزلو حق نه ورکوي..... د بې وزلي مور او پلار بوډاګان او ناروغه وي، ښځه يې بربنډه وي او بچي يې وږي وي...... نو دا خوپه زوره غلا ته جوړ او اړايستل شوی دی. په داسې وخت کې بيا لاس غوڅول نشته. اسلام ځمکه او کور ورکوي، زکاتو نه او د بيت المال برخه ورکوي، تېلو، ګاز، سرو او سپينو زرو، معدنونو او کانونو، ځنګلونو او ښارو کې برخه ورکوي او نور ډېر مالي، سياسي او ټولنيز حقوق يې خوندي ساتي او وړيا يې تر کوره ور رسوي. له دې ټولو سره سره چې بيا غلا کوي، نو لاس يې بې شکه د غوڅولو دی.

## پيتموزې او ملنډې

په اسلام کې چا پورې پيتموزې (۱) کول او په هغه منلډې وهل ناروا او لويه ګناه ده. په سخته يې منع کوي اومخنيوی يې کوي. په اسلام کې هر انسان درون ګڼل کېږي او د چا سپکاوی کول ناروا دي.

الله تعالی فرمايي:

---

۱- (پيتموزې) چاباندې مسخرې کول، ريشخند او ملنډې وهلو ته ويل کېږي.د برې پښتونخوا وګړي يې (پيتموزې) او د کوزې يې (پيچموزې) بولي.

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ يَسْخَرْ قَومٌ مِّن قَوْمٍ عَسَى أَن يَكُونُوا خَيْرًا مِّنْهُمْ وَلاَ نِسَاء مِّن نِّسَاء عَسَى أَن يَكُنَّ خَيْرًا مِّنْهُنَّ وَلاَ تَلْمِزُوا أَنفُسَكُمْ"[1]

"ای مؤمنانو! يو قوم دې له بل پورې پېتموزې نه کوي؛ کېدی شي، چې هغوی له دوی غوره وي. او نه دې ښځې د ښځو پورې پېتموزې کوي؛ کېدی شي، چې هغوی له دوی غوره وي او په خپلو کې په يو بل عيب مه لګوئ".

که د چاپه خلقت کې کوم عيب وي او الله تعالی همغسې پيدا کړی وي، لکه ټيټوالی، بدرنګي، ړوندوالی او داسې نور، يا په کومه پېښه کې ګوډ شوی يا شوټی شوی وي.......نو د هغه پېغور ورکول منع دي:

په حديث کې داسې راځي:

عن عائشة قالت: قلت للنبی صلی الله عليه وسلم: حسبك من صفية كذا وكذا، تعنی قصيرة. فقال: " لقد قلت كلمة لو مزج بها البحر لمزجته"[2]

له عائشې رضی الله عنها نه روايت دی هغه وايي: ماپېغمبر صلی الله عليه وسلم ته وويل: د صفيې خو دا دا عيب بس دی، مراد يې دا ؤ چې ټيټه او لنډه ده. هغه وفرمايل: " داسې ناوړه خبره دې وکړه، چې که په درياب کې ګډه شي، نو رنګ به يې بدل کړي".

---

[1] - سورة الحجرات: ۱۱.

[2] - رواه أبو داود والطحاوی.

د اسلام له آدابو ، تهذیب او محاسنو نه داهم ده، چې چاته داسې سپک مه ګوره، چې د هغه په جامه لاس پاک کړې. په حدیث کې داسې راځي:

عن أبي بكرة قال: "نهى النبى صلى الله عليه وسلم أن يمسح الرجل يده بثوب من لم يكسه"[1]

له ابو بکره رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي: "پېغمبر صلی الله علیه وسلم له دې منع کړې ده، چې یو سړی د هغه چاپه جامه لاس ومښي، چې ده نه دي وراغوستي".

معنی دا چې روزی ورکوونکی او جامې ورکوونکی الله تعالی دی، نو څوک دومره سپک مه ګڼه، چې له ډوډۍ خوړلو او لاس مینځلو نه وروسته یا نور ککړ لاسونه د هغه په جامه ومښې او وچ یې کړې. دا معنی نه ده، چې ګنې چا ته دې جامې ورکړې وي؛پرې پاکوه یې؛ بلکه د مزدور، خادم او هیچا په جامه یې مه پاکوه. دا د اسلام هغه کرامت او عزت دی، چې هر انسان ته یې ورکړی دی.

د اسلام له آدابو نه بل ادب دا دی، چې داسې ناسته پاسته او ملاسته به نه کوي، چې عورت دې معلوم شي.

په حدیث کې داسې راځي:

عن جابر قال: " نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم أن يرفع الرجل إحدى رجليه على الأخرى وهو مستلق على ظهره"[2]

---

[1]- رواه ابوداود والبيهقي.
[2]- رواه مسلم.

له جابر رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي: "رسول الله صلی الله علیه وسلم له دې منع کړې ده، چې یو سړی ستوني ستخ پروت وي او خپله یوه پښه پر بلې واړوي".
په دې هکله دوه حدیثونه راغلي دي: یو یې همدا دی او بل کې یې جواز دی، نو د دواړو توفیق او تطبیق له روایاتو داسې کېږي، چې که دواړه پښې وغځوي، نو بیا یوه پر بله دپاسه غځول روادي او که دواړه پښې یې را ټولې کړې او نېغې ودرولې وي، نو بیا د ملاستې په وخت کې چې یوه پښه پر بلې واړوې، نو دعورت د ځرګندېدو یا د جامو له پاسه معلومېدو احتمال دی، نو ځکه دا کار منع دی.

## د نوم ړنګول

د چا نوم خرابول او هغه سپک ګڼل هم ناروا دي. په یو چا باندې چې مور او پلار کوم سم نوم ایښی وي، یا یې خپله د ځان لپاره کوم نوم یا تخلص غوره کړی وي؛ هغه بدلول، خرابول او په بله معنی ګڼل ناروا دي.
الله تعالی فرمایي:
"وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ بِئْسَ الاِسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الإِيمَانِ وَمَن لَّمْ يَتُبْ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ"[1]

---

[1]- سورة الحجرات: ۱۱.

" په خپلو منځو کې د يو بل تخلص نوم مه خرابوئ. له ايمان نه وروسته د ګناه نوم ډېر بد دی او چاچې توبه ونه ايسته، نو همغوی ظالمان دي".

## بد ګماني

بدګماني هم په اسلام کې ګناه ده او اسلام په سختۍ سره د بدګمانۍ مخنيوی کوي.

بې دليله او هيڅ په هېڅه په چا تور لګول او بدګمان کول کبېره ګناه ده او اسلام يې په کلکه منع کوي:

الله تعالی فرمايي:

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيراً مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ" [1]

"ای مؤمنانو! له ډېرو ګمانونو څخه ځانونه وژغورئ، ځينې ګمان بې شکه ګناه ده".

ځينې يې له دې امله وويل، چې په دليل او قرينې باندې ګمان کول ګناه نه ده. همدارنګه احتياط کول او له هر چا سره معامله نه کول هم ګناه نه ده.

په اسلام کې بدګماني ګناه ده او تر څو چې کوم دليل نه وي، نو په هر چا بايد ښه ګمان وشي.

په حديث کې په دې هکله داسې راځي:

[1]- سورة الحجرات: ۱۲.

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "حسن الظن من حسن العبادة"[1]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: "ښه ګمان له ښه عبادت څخه دى".

## جاسوسي کول او عيب لټول

د چا عيبو نه لټول، غوږ ايښودل ، کافرو او طاغوتي حکومتونو لپاره يا په خپلو منځو کې يو تر بله جاسوسي کول هم په اسلام کې ناروا دي؛اسلام يې په سخته مخنيوى کوي او کبيره ګناه يې ګڼي.

الله تعالى فرمايي:

"ولاتجسسوا"[2]

"او جاسوسي مه کوئ" " د چا عيب مه لټوئ" چاته غوږ مه ږدئ، چاپسې نوغى مه لټوئ.

---

[1]- رواه أبو داود وأحمد.
[2]- سورة الحجرات: ۱۲.

# غيبت کول

غيبت دې ته وايي، چې پسي شا او په غياب کې د چاناوړه کارونه او عيبونه يادوې.

خو که کافر، بدکاری او ورانکاری وي او ددې لپاره يې عيبونه او ناوړه کارونه يا دوې، چې خلک ترې ځان وژغوري او ځوک پرې ونه غولېږي، نو بيا غيبت نه ګڼل کېږي. او که داسې نه وي، نو غيبت ګڼل کېږي. غيبت په اسلام کې کبيره ګناه ده او داسې ناوړه عمل ګڼل کېږي،لکه د مړه ورور غوښه چې خوري. اسلام غيبت په سخته منع کوي.

الله تعالی فرمايي:

"وَلَا يَغْتَب بَّعْضُكُم بَعْضًا أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَن يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوهُ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ رَّحِيمٌ"[1]

" په خپلو منځو کې يو د بل غيبت مه کوئ، آيا په تاسو کې ځوک دا خوښوي، چې د خپل مړه ورور غوښه وخوري؟ دا خو بده ګڼئ. نوالله نه ووېرېږئ، الله بې شکه توبه قبلوونکی او خورا زيات لوروونکی دی".

مطلب دا چې غيبت کول داسې دي، لکه د خپل مړه ورور غوښه چې خوري. نو لکه څرنګه چې د خپل مړه ورور غوښه خوړل بد ګڼې؛ همدارنګه يې غيبت هم مه کوه.

[1]- سورة الحجرات: ١٢.

# د غيبت او بهتان تر منځ توپير

غيبت ډېره لويه ګناه ده، د غيبت اوبهتان (تور) تر منځ د توپير په هکله داسې حديث راغلی دی:

عن أبی هريرة أن رسول الله صلی الله عليه وسلم قال: "أتدرون ماالغيبة؟ " قالوا: الله ورسوله أعلم. قال: "ذكرك أخاك بما يكره"؛ قيل: أفرأيت إن كان فی أخي ما أقول؟ قال: " إن كان فيه ما تقول فقد اغتبته و إن لم يكن فيه ما تقول فقد بهته"[1]

له ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "آيا تاسو پوهېږئ، چې غيبت څه شی دی؟ " هغوی وويل: الله او د هغه پېغمبر ښه پوهېږي . هغه وفرمايل: " غيبت دا دی، چې خپل ورور په داسې شان ياد کړې، چې هغه يې بد ګڼي" چا ورته وويل: مونږ په دې پوه کړه، چې که په هغه کې هغه کار وي، چې زه يې وايم نو بيا ؟رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "که په هغه کې هغه څه وي، چې ته يې وايې، نو تايې غيبت وکړ او که په هغه کې هغه څه نه وي، چې ته يې وايې، نو تا پرې تور ولګاوه".

[1] ـ رواه مسلم وابوداود والترمذي والنسائي واحمد والدارمي وابن ابي شيبة وابن حبان والبيهقي والبزار وابويعلی.

# بدسلوک

اسلام هر له چا سره د ښه سلوک کولو او له ښو اخلاقو سره راشه درشه او ناستې پاستې باندې امر کوي او له بدسلوک او ناوړه اخلاقو نه منع کوي.

الله تعالى د لقمان ښکلي نصيحتونه داسې څرګندوي:

"وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ"[١]

"خلکو ته دې مخ مه تریووه او په ځمکه کې مست مه ګرځه، الله بې شکه هر کبرجن او مغرور نه خوښوي".

معنى دا چې له خلکو سره په خپره تندې مخ کېږه او چاته تنده مه تریووه.

په حديث کې له خلکو سره په ورين تندي او خوشحاله مخ د مخ کېدو په هکله داسې راغلي دي:

عَنْ أَبِى ذَرٍّ قَالَ قَالَ لِىَ النَّبِىُّ صلى الله عليه وسلم: " لاَ تَحْقِرَنَّ مِنَ الْمَعْرُوفِ شَيْئًا وَلَوْ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ ".[٢]

له ابوذر رضى الله عنه نه روايت دى، هغه وايي: ماته نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " هيڅ ښېګړه سپکه مه ګڼه، که له

---

[١]- سورة القمان: ۱۸.
[٢] - رواه مسلم والترمذي وأحمد والبيهقي في شعب الإيمان.

خپل ورور سره په ورين تندي او خوشحاله مخ مخامخ شي؛ دا هم ښېګړه ده (او سپکه يې مه ګڼه)".

په يو روايت کې داسې راځي:

عن أبي ذر قال: قال رسول الله صلى الله عليه و سلم: "لا يحقرن أحدكم شيئا من المعروف وإن لم يجد فليلق أخاه بوجه طلق وإن اشتريت لحما أو طبخت قدرا فأكثر مرقته وأغرف لجارك منه". [1]

له ابوذر رضی الله عنه نه روايت دی، هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: " ستاسو يو کس دې هيڅ ښېګړه سپکه نه ګڼي؛ که هيڅ يې ونه موندل، نو له خپل ورور سره دې په ورين تندي او خوشحاله مخ مخامخ شي. که غوښه دې واخيسته، يا دې نور څه پاخه کړل، نو ښوروا يې ډېره کړه او خپل ګونډي ته هم ترې څه ورکړه ".

په يو بل روايت کې داسې راځي:

عن جابر بن عبد الله قال: قال رسول الله صلى الله عليه و سلم:" كل معروف صدقة وإن من المعروف أن تلقى أخاك بوجه طلق وأن تفرغ من دلوك في إناء أخيك". [2]

له جابربن عبدالله رضی الله عنه نه روايت دی، هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: " هره ښېګړه خيرات دی؛ له ښېګړو څخه دا هم ده، چې له خپل ورور سره په ورين تندي او

[1] - رواه الترمذي وابن حبان.
[2] - رواه الترمذي وأحمد.

خوشحاله مخ مخامخ شي او خپله سلواغه (بوکه) د خپل ورور په لوښي کې ور تشه کړې".

## په تول او کچ کې کمی کول

اسلام د عدل، انصاف او عدالت دين دی؛ هر چاته خپل حق سپاري او د هيچا دحق خوړلو اجازه نه ورکوي، نو ځکه په تول، پېمانې او کچ کې کمی کول کبيره ګناه ګڼي، مخنيوی يې کوي او په سخته يې منع کوي.

الله تعالی فرمايي:

"وَأَوْفُواْ الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ"[1]

"پېمانه او تول په انصاف پوره کړئ".

اوفرمايي:

"وَلاَ تَنقُصُواْ الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ"[2]

"کچ او تله مه کموئ".

او فرمايي:

"أَوْفُواْ الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ وَلاَ تَبْخَسُواْ النَّاسَ أَشْيَاءهُمْ وَلاَ تَعْثَوْاْ فِي الأَرْضِ مُفْسِدِينَ"[3]

---

[1]- سورة الانعام: ١٥٢.
[2]- سورة هود: ٨٤.
[3]- سورة هود: ٨٥.

"کچ او تول په انصاف بشپړ کړئ، د خلکو شيان مه کموئ او په ځمکه کې فساد کوونکي مه ګرځئ".

او فرمايي:

"وَأَوْفُوا الْكَيْلَ إِذا كِلْتُمْ وَزِنُواْ بِالقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ"[1]

" کله مو چې پيمانه او کچ کاوه، نو پوره يې کوئ او په سمې ډنډې تول کوئ".

معنی دا چې د هرشي کچ، پيمانه او اندازه پوره کوئ ،په تول کې د تلې ډنډه سمه ساتئ او د چا حق مه کموئ؛ که څه زيات ورکوئ، نو خير دی.

او فرمايي:

"وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيزَانَ"[2]

" تول په انصاف ودروئ او په تله کې کمی مه کوئ".

او فرمايي:

"وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ الّذِينَ إِذَا اكْتَالُواْ عَلَى النَّاسِ يَسْتَوْفُونَ وَإِذَا كَالُوهُمْ أَو وَّزَنُوهُمْ يُخْسِرُونَ أَلَا يَظُنُّ أُولَئِكَ أَنَّهُم مَّبْعُوثُونَ لِيَوْمٍ عَظِيمٍ يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ"[3]

"هغو کموونکيو لپاره دې هلاکت وي، چې کله يې له خلکو نه راپيمانه کوي، نو پوره يې اخلي او کله يې چې هغوی ته پيمانه کوي يا تلي، نو کموي يې، آيا دوی باور نه کوي، چې دوی

[1]- سورة الاسراء: ۳۵.
[2]- سورة الرحمن: ۹.
[3]- سورة المطففين: ۱ـ ٦.

هغې لویې ورځې ته را پورته کېدونکي دي، چې خلک به د ټولو مخلوقاتو رب ته ودرېږي؟".

اسلام پلورونکي ته امر کوي، چې پېرودونکي (اخیستونکي) ته خپل توکي دراندہ ور وتلي. په حدیث کې داسې راځي:

عَنْ سُوَيْد بْنِ قَيْسٍ ، قَالَ : جَلَبْتُ أَنَا وَمَخْرَفَةُ الْعَبْدِيُّ بَزًّا مِنْ هَجَرَ ، فَجَاءَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّمَ ، فَسَاوَمَنَا سَرَاوِيلَ ، وَعِنْدَنَا وَزَّانٌ يَزِنُ بِالأَجْرِ ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّمَ : "يَا وَزَّانُ! زِنْ وَأَرْجِحْ".[1]

له سوید بن قیس رضی الله عنه نه روایت دی، هغه وایي: ما او مخرمه عبدي له (هجر) نه رختونه (ټوکران) راوړل، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته راغی او یوکمیس یا پرتوګ یې راسره په نرخ برابرکړ او وایې خیست؛ له مونږ سره یو تول کوونکی و، چې په مزدورۍ به یې تول کاوه؛ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: " ای تول کوونکیه! تول کوه او دروند یې کوه ".

## غوړه مالي

په اسلام کې د چا بې ځایه او مخامخ ستایل او غوړه مالي منع ده، په حدیث کې داسې راځي:

[1] - رواه أبوداود والترمذي وابن ماجه والنسائي وأحمد والدارمي والطيالسي والحاكم والبيهقى في السنن وشعب الإيمان ومعرفة السنن والآثار والطبراني وابن الجارود وأبويعلى وابن أبي شيبة وعبدالرزاق.

عن المقداد بن الأسود قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :"إذا رأيتم المداحين فاحثوا فى وجوههم التراب"[1]

له مقداد بن الاسود رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: "کله چې مو ډېر ستايونکي او غوړه مالان وليدل، نو د هغوی په مخونو لپې لپې خاورې ورواچوئ ".

غوړه مالي، چاپلوسۍ او بوټپاکۍ ته ويل کېږي؛ په دې کې مبالغې، حق تلفي، غره کېدل او نور ناوړه پايلې منځ ته راځي، نو ځکه د چا مخامخ ستايل منع دي؛ خو د تشجيع لپاره په ښوکارونو د چا تېزول بيا روا دي.

## نورې ګناوې

په اسلام کې ټول ناوړه کارونه ګناوې دي، چې د ټولنې خوشحالي او امن ړنګوي. په يو حديث کې ځينې لويې ګناوې داسې راپه ګوته شوې دي:

عن عبدالله بن عمرو: قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " الكبائر الإشراك بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس "[2]

---

[1] - رواه مسلم.

[2] - رواه البخارى ومسلم.

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلموفرمايل: " لويې ګناوې دا دي: له الله سره شريک ګڼل، له مور او پلار نه سرغړونه، د چاوژل او په دروغو قسم کول ".

په بل حديث کې ډېرې لويې اوه ګناوې داسې راښيي :

عـن أبـي هريـرة قـال: قـال رسـول الله صـلى الله عليـه وسـلم: "إجتنبـوا السـبع الموبقـات: قـالوا : يارسـول الله! ومـاهن؟ . قـال: " الشرك بالله، والسحر، وقتل النفس التى حرم الله الابالحق، و أكل الربا، و أكل مال اليتيم، والتولى يوم الزحف، وقذف المحصنات المؤمنات الغافلات "۱

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " تاسو له اوو هلاکوونکيو ګناهونو نه ځانونه وژغورئ " صحابه ؤ وويل : ای د الله پېغمبره! هغه کومې دي؟ هغه وفرمايل:" له الله سره شريک ګڼل، کوډې، په ناحقه د هغه چاوژل چې الله حرام کړی دی، د سود خوړل، د يتيم د مال خوړل، د جهاد په سنګر کې د تودې جګړې له ميدانه تېښته او په پاکلمنو ناخبرو مؤمنانو ښځو باندې تور لګول".

نو دا اوه ګناوې ډېرې لويې او هلاکونکې دي ځکه، چې کوونکی يې د دوزخ د سخت عذاب مستحق ګرځي.

په بل حديث کې څو ګناوې داسې راپه ګوته کېږي:

---

۱- رواه البخاری ومسلم.

عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قال: قال رجل: يارسول الله! أى الذنب أكبر عندالله؟ قال: "أن تدعولله ندا وهو خلقك" قال: ثم أى ؟ قال: "أن تقتل ولدك خشية أن يطعم معك" قال: ثم أى؟ قال: "أن تزنى حليلة جارك" فأنزل الله تصديقها: " والذين لا يدعون مع الله إلها آخر ولا يقتلون النفس التى حرم الله الا بالحق ولا يزنون" الآ ية[1]

له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: يو سړي وويل: ای د الله پېغمبره! له الله سره کومه يوه ګناه ډېره لويه ده؟ هغه وفرمايل: "دا چې الله ته پيدا کړی يې او بيا هم له هغه سره بل شريک راوبلې" هغه وويل: بيا کومه ده؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " داچې بچی له دې وېرې ووژنې، چې له تاسره به ډوډۍ وخوري" هغه وويل: بيا کومه ده؟ رسول الله صلی الله عليه وسلموفرمايل: "دا چې ته د خپل ګاونډي له ښځې سره زنا وکړې" الله تعالی د دې خبرو تصديق داسې راولېږه : "مؤمنان هغه خلک دي، چې له الله سره بل معبود نه رابلي، په ناحقه هغه څوک نه وژني چې الله حرام کړی وي او زنا نه کوي...." تر آخره.

په دې کې اوسني د نسل تحديدونه هم داخل دي، چې له دې وېرې دماشومانو زېږېدل بندوي، چې خلک به ډېر شي او بيا به يې پالنه سخته وي..... روزي الله تعالی ورکوي اود الله ځمکه هم ډېره پراخه ده. زنا هره يوه ډېره لويه ګناه ده؛ خو دهغه ګاونډي پت

[1]- راه البخارى ومسلم.

او عزت ته سپک کتل ډېره لويه ګناه ده، چې په تا د ګاونډيتوب زيات حقوق لري او د هغه د پت او عزت ساتل اوژغورل په تا فرض دي؛ خو ته د دې ټولو خيال ونه ساتې او په دې سربېره د هغه د پت او عزت سپکاوی وکړې، نو دا بيا لالويه ګناه ده.

د ايمان او دګناه نښې او د مؤمن ځانګړتياوې په يو حديث کې داسې راځي:

عن أبي أمامة أن رجلا سأل رسول الله صلى الله عليه وسلم : ماالإيمان ؟ قال : "إذا سرتك حسنتك و ساءتك سيئتك فأنت مؤمن" قال: يارسول الله! فماالإثم؟ قال: "إذا حاك فى نفسك شئ فدعه"[1]

له ابو أمامه رضي الله عنه نه روايت دی، چې يو سړي له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړه، چې ايمان څه شی دی؟ هغه وفرمايل : " کله چې خپلې نېکۍ خوشحاله کړې او خپلې ګناه خپه کړې، نو ته مؤمن يې" هغه وويل: ای د الله پېغمبره! نو ګناه څۀ شی دی؟ هغه وفرمايل: " کله چې دې په زړه کې يوشي کرکه پيدا کړه، نو پرې يې ږده".

[1]- رواه أحمد.

# کبر

کبرځان له نورو خلکو لوی ګڼلو، حق نه منلو او خلک سپک ګڼلو ته ويل کېږي. اسلام کبر غندي اوله کبر او لويي کولو نه مسلمانان منع کوي.

په حديث کې کبر داسې بد ګڼل شوی دی:

عن حارثة بن وهب قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "ألا أخبركم بأهل الجنة؟ كل ضعيف متضعف لو أقسم على الله لأبره؛ ألاأخبركم بأهل النار؟ كل عُتُلٍ جواظ مستكبر"[1]

له حارثه بن وهب رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "آيا زه تاسو ته جنتيان دروښيم؟ هر کمزوری اوکمزوری ګڼل شوی دی، چې که په الله باندې قسم وکړي، نو خامخا به يې غاړه خلاصه کړي. آيا تاسو ته دوزخيان دروښيم؟ هر سر غړوونکی؛ بداخلاقه او کبرجن دوزخي دی".

په بل حديث کې داسې راغلي:

عن ابن مسعود قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لايدخل النار أحد فى قلبه مثقال حبة من خردل من إيمان ولا يدخل الجنة أحد فى قلبه مثقال حبة من خردل من كبر"[2]

[1]- رواه البخارى ومسلم.
[2]- رواه مسلم.

له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " هغه څوک دوزخ ته نه ننوځي، چې په زړه کې يې د اوري د دانې په کچ ايمان وي او هغه څوک جنت ته نه ننوځي، چې په زړه کې يې د اوري د دانې په کچ کبر وي".

په يو حديث کې درې ښه او درې ناوړه کارونه داسې راپه ګوته شوي دي:

عن أبي هريرة أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: " ثلاث منجيات وثلاث مهلكات فأماالمنجيات: فتقوى الله فى السر والعلانية، والقول بالحق فى الرضا والسخط، والقصد فى الغنى والفقر، وأما المهلكات: فهوىً متبع، وشح مطاع، و إعجاب المرء بنفسه. وهى أشد هن"[1]

له ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "درې نجات ورکوونکي خويونه دي او درې هلاکوونکي دي. نجات ورکوونکي دا دي:

۱ - په پټه اوښکاره له الله نه وېره.

۲ - په رضا او غوسه کې د حق وينا.

۳ - په مالدارۍ او بې وزلۍ کې منځلاري.

او هلاکوونکي دا دي.

۱ - د خواهش تابعداري.

۲ - د بخل منل.

---

[1]- رواه البيهقى فى شعب الايمان.

۳- او يو چاته ځان له نورو څخه لوی او لوړ ښکارېدل. چې دا تر ټولو ناوړه دی".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن عمر قال وهو على المنبر: "يا أيها الناس تواضعوا فإنى سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: " من تواضع رفعه الله فهو فى نفسه صغير و فى أعين الناس عظيم و من تكبر و ضعه الله فهو فى أعين الناس صغير و فى نفسه كبير حتى لهو أهون عليهم من كلب أو خنزير"[۱]

عمر رضي الله عنه په منبر ولاړ ؤ چې ويې ويل: "ای خلکو! خاکساري وکړئ ځکه، چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې فرمايل يې: " چاچې الله لپاره عاجزي وکړه، نو الله به يې لوړ کړي؛ هغه ته ځان ووړ ښکاري او د خلکو په سترګو کې لوی وي او چاچې لويي وکړه، نوالله تعالى به يې ښکته کړي؛ هغه د خلکو په سترګو کې ووړ وي. او ځان ورته لوی ښکاري، تر دې چې خلکو ته له سپي او خوګ نه هم سپک ښکاري".

## کبر څه شی دی؟

کبر لويي ته ويل کېږي. خلک سپک ګڼل، ځان لوی ګڼل او حق نه منل، حق ته غاړه نه ايښودل او خپله پړه نه منل کبر دی.

په حديث کې داسې راځي:

[۱]- رواه البيهقى فى شعب الايمان.

عن ابن مسعود قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "لايدخل الجنة من كان فى قلبه مثقال ذرة من كبر" فقال رجل: إن الرجل يحب أن يكون ثوبه حسنا و نعله حسنا. قال: " إن الله جميل يحب الجمال، الكبر بطرالحق و غمط الناس"[1]

له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " هغه څوک جنت ته نه ننوځي، چې په زړه کې يې د ذرې په اندازه کبر وي" يو سړي وويل: يو سړى دا خوښوي، چې جامې يې ښکلې وي، څپلۍ يې ښکلې وي. (آيا دا کبر دى؟) رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " الله ښکلى دى او ښکلا خوښوي (دا کبر نه دى بلکه) کبر د حق ردول (نه منل) او د خلکو سپک ګڼل دي".

## د دوه غړو له شره ځان ژغورنه

زياتې ګناوې د دوه غړو د کاواکۍ او بې باکۍ له کبله کېږي، چې يوه ژبه او بل عورت (شرمځاى) دى، نو ځکه له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه په دې هکله داسې حديث راغلى دى:

عن سهل بن سعد قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " من يضمن لي مابين لحييه و مابين رجليه أضمن له الجنة"[2]

---

[1]- رواه مسلم.
[2]- رواه البخارى.

له سهل بن سعد رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " چا چې ماته د دوه غړو ضمانت راکړ، نو زه به ورته دجنت ضمانت ورکړم: يو د دوه ژامنو په منځ کې (ژبه) ده او بل د دواړو پښو په منځ کې (عورت) دی".

ريښتيا هم دا دواړه غړي د ګناهونو لاملونه اوبواعث دي. په ژبه دروغ، غيبت، چغلي، کنځل او سپکې سپورې، شيطاني او د دوه ؤ جنګول، د چاپه خلاف خبرې، او نورې بې شمېره او ګڼې ناوړه او د ګناه خبرې کېږي.

او په عورت زنا او لواطت کېږي، چې ډېرې لويې ګناوې دي او د ډېرو ناوړو عواقبو او نتائجو زېږوونکي دي.

## کنځل کول

په اسلام کې چاته کنځل کول ناروا دي او چا چې لومړی کنځلې وکړې، نو ګناه يې په هغه ده. په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة أن رسول الله صلی الله عليه وسلم قال: "المستبان ما قالا فعلی البادی مالم يعتد المظلوم". [1]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " دوه کسان چې يوتر بله سره کنځلې

[1]- رواه مسلم.

کوي، نو تر څو چې مظلوم تېرى نه وي کړى؛ ګناه يې په هغه چا ده، چې لومړى په کنځلو پيل کوونکى وي".

همدارنګه زياتې سپکې سپورې ويل هم ناروا دي. په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "لاينبغى لصديق أن يكون لعانا"[1]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "رېښتيني ته دا نه ښايي، چې ډېر لعنت ويونکى وي".

## چغلي

د اسلام له ښېګړو او محاسنو نه دا هم ده، چې يو بل ته دناوړه خبرې رسول او چغلي يې منع کړې ده.

په حديث کې د چغلۍ او شيطانۍ په هکله داسې راغلي دي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "تجدون شرالناس يوم القيامة ذا الوجهين الذى يأتي هؤلاء بوجه و هؤلاء بوجه"[2]

---

[1] رواه مسلم.
[2] رواه البخارى ومسلم.

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "دقيامت په ورځ به تاسو په ټولو خلکو کې ډېر بد هغه ومومئ، چې دوه مخی وي؛ دې يوې ډلې ته په يو مخ راځي او دې نورو خلکو ته په بل مخ".

مطلب دا ،چې دشيطانۍ او چغلۍ لپاره يوې ډلې ته يوه خبره کوي او بلې ته بله، يوې ته وايي زه ستاسو خواخوږي او مخلص يم او بلې ته وايي چې ستا سو يم.

په بل حديث کې د چغلګر په هکله داسې راځي:

عن حذيفة قال: سمعت رسول الله صلی الله عليه وسلم قال: "لا يدخل الجنة قتات" [1]

له حذيفه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې ماله رسول الله صلی الله عليه وسلم نه اورېدلي دي، چې ويې فرمايل: "چغلګر جنت ته نه ننوځي".

## له عبثو کارونو څخه ځا ن ژغورنه

اسلام انسانان په ګټورو کارونو کې بوختوي او داسې کار، چې نه دنيوي مالي، بدني، فردي، ټولنيزه، ظاهري يا معنوي ګټه لري او نه اخروي؛ له هغه نه بايد مسلمان ځان وژغوري، د داسې عبث کار کول له مروئت، وقار او عزيمت نه خلاف دي.

[1]- رواه البخاری ومسلم.

الله تعالی د مؤمنانو په کره ځانګړتیاو کې داهم شمېري چې:

"وَالَّذِينَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُونَ "[١]

"او هغه (مؤمنان بریالي دي) چې هغوی له عبثو کارونو نه مخ اړوونکي وي".

او فرمايي:

"وَإِذَا مَرُّوا بِاللَّغْوِ مَرُّوا كِرَامًا"[٢]

" او (د الله نېک بندګان هغه خلک دي) چې کله په عبثو کارونو تېرېږي، نو عزتمند پرې تېرېږي".

په اسلام کې بې ګټې اوبې مقصده خبرې او کارونه هم ښه نه دي ګڼل شوي، چې له تاپورې هيڅ اړه نه لري، نو هغه خبره او هغه کار مه کوه.

په حديث کې داسې راځي:

عن على بن الحسن قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم:" من من حسن إسلام المرء تركه مالا يعنيه"**٣**

له على بن حسن رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " د يو سړي د اسلام له ښه والي او ښکلا نه دهغه څه پرېښودل دي، چې ورپورې اړه نه لري".

---

[١]- سورة المؤمنون: ٣.

[٢]- سورة الفرقان: ٧٣.

[٣]- رواه مالك وأحمد وابن ماجة والترمذي والبيهقى.

# قوم پرستي

په اسلام کې داسې قوم پرستي نشته، چې له قوم نه دې داسې معبود جوړ کړی وي، چې نور قومونه او خپلونه سپک ګڼې او دخپل قوم بې توپيره د روا او ناروا دفاع او ملاتړ کوې.

په حديث کې داسې راځي:

عن ابن مسعود عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "من نصر قومه على غيرالحق فهو كالبعير الذى ردى فهو ينزع بذنبه"[1]

له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی، چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "چاچې په ناحقه د خپل قوم سره مرسته وکړه؛ هغه د هغه اوښ غوندې دی، چې په کوهي (څا) کې پرېوتی وي، نو هغه په خپلې لکۍ را ايستل کېږي".

په بل حديث کې داسې راغلي دي:

عن جبير بن مطعم أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "ليس منامن دعى إلى عصبية وليس منامن قاتل عصبية وليس منا من مات على عصبية"[2]

له جبير بن مطعم رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " چا چې د قومي ريښې کرکې ته بلنه ورکړه؛ هغه له مونږ څخه نه دی، څوک چې په

---

[1]- رواه أبوداود وأحمد وابن حبان والبيهقي وابن أبي شيبة والشاشي في مسنده.
[2]- رواه أبوداود.

عصبيت وجنګېد؛ هغه له مونږ څخه نه دی او څوک چې په عصبيت ومړ هغه له مونږ څخه نه دی".

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ، قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّمَ : مَنْ قَاتَلَ تَحْتَ رَايَةٍ عِمِّيَّةٍ ، يَدْعُو إِلَى عَصَبِيَّةٍ ، أَوْ يَغْضَبُ لِعَصَبِيَّةٍ ، فَقِتْلَتُهُ جَاهِلِيَّةٌ.[1]

له ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دی،چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: " څوک چې له ړانده بيرغ لاندې وجنګېده، چې د قومي ريښې کرکې ته بلنه ورکوي، يا دقومي ريښې د کرکې لپاره په غوسه کېږي، نو د هغه وژنه د جاهليت ده ".

د عصبيت تعريف په حديث کې داسې راغلی دی:

عن واثلة بن الأسقع قال: قلت: يارسول الله! ماالعصبية؟ قال : "أن تعين قومك على الظلم". ۲

له واثله بن اسقع رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي : ما وويل: ای د الله پېغمبره! عصبيت څه شی دی؟ هغه وفرمايل: "عصبيت دا دی، چې په ظلم د خپل قوم مرسته وکړې".

په ظلم او ناروا د خپل قوم بلکه د هرچا مرسته ناروا ده. خوپه حقه له خپل قوم، وطن،ولس، کورنۍ او ټبر نه دفاع کول ښه کار دی او د خپل قوم حق غوښتل ناروا نه بلکه فرض دي. لکه موسی عليه السلام چې له فرعون څخه دخپل قوم ازادي غوښته. موسی عليه السلام فرعون ته داسې و ويل:

[1] - رواه النسائي وابن ماجة والبيهقي والطبراني في الأوسط.

[2] - رواه أبوداود والبيهقي في السنن الكبرى والصغرى و معرفة السنن والطبراني في الكبير وأبويعلى في مسنده.

"قَدْ جِئْتُكُم بِبَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ فَأَرْسِلْ مَعِيَ بَنِي إِسْرَائِيلَ". [1]
" ما بې شکه تاسو ته ستاسو د رب له پلوه څرګند دليل راوړی دی، نو بني اسرائيل له ماسره راپرېږده ".
او په دې باندې الله تعالی موسی او هارون عليهما السلام ته امر کړی و، لکه چې فرمايي:
"فَأْتِيَاهُ فَقُولا إِنَّا رَسُولا رَبِّكَ فَأَرْسِلْ مَعَنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ وَلا تُعَذِّبْهُمْ قَدْ جِئْنَاكَ بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكَ وَالسَّلامُ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى". [2]
" تاسو دواړه فرعون ته ورشئ، ورته و وايئ،چې مونږ دواړه ستا د رب استازي يو،نو بني اسرائيل له مونږ سره راپرېږده او مه يې کړوه. مونږ تاته ستا د رب له پلوه معجزه راوړې ده، په هغه چا دې سلام وي، چې هدايت پسې لاړ ".
په بل ځای کې فرمايي:
"فَأْتِيَا فِرْعَوْنَ فَقُولا إِنَّا رَسُولُ رَبِّ الْعَالَمِينَ أَنْ أَرْسِلْ مَعَنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ". [3]
" تاسو دواړه فرعون ته ورشئ، ورته و وايئ،چې مونږ دواړه د ټولو خلکو د رب استازي يو،چې بني اسرائيل له مونږ سره راپرېږده ".
او موسی عليه السلام فرعون ته و ويل:
"وَتِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ أَنْ عَبَّدتَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ". [4]

[1] - سورةالأعراف: ۱۰۵.
۲ - سورة طه: ۴۷.
۳ - سورةالشعراء: ۱۷-۱۶.
٤ - سورةالشعراء: ۲۲.

" آيا دا کومه پېرزوينه ده،چې بني اسرائيل دې خپل غلامان جوړ کړي دي!؟ ".

نو تعصب په ناروا له چا سره ودرېدل او د هغه پلوي کول دي.

د خپل قوم او ولس آزادي او حقوق غوښتل نا روا نه بلکه مطلوب دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن سراقة بن مالك بن جعشم قال: خطبنا رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "خيركم المدافع عن عشيرته مالم يأثم". ۱

له سراقه بن مالک بن جعشم رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم خطاب وکړ او ويې فرمايل: " په تاسو کې غوره هغه څوک دی، چې تر څو د ګناه کار نه وي، نو له خپل ټبر نه دفاع کوونکی وي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن عبادة بن كثير الشامى من أهل فلسطين عن إمرأة منهم يقال لها فسيلة أنها قالت: سمعت أبي يقول: سألت رسول الله صلى الله عليه وسلم فقلت: يارسول الله! أمن العصبية أن يحب الرجل قومه؟ قال: " لا ولكن من العصبية أن ينصرالرجل قومه على الظلم." ۲

[1]- رواه أبوداود والبيهقي في شعب الإيمان والطبراني في الأوسط والصغير وأبوالقاسم في معجم الصحابة و أبونعيم في معرفة الصحابة.

[2]- رواه أحمد وابن ماجة والبيهقي وابن أبي شيبة والطبراني في الكبير والروياني في مسنده و أبونعيم في معرفة الصحابة.

عباده بن کثير شامي فلسطينی، دهغوی د قبيلې له يوې ښځې څخه روايت کوي، چې فسيله نومېده، هغې وويل: ما له خپل پلار نه اورېدلي دي، چې ويل يې: ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړه، چې ای د الله پېغمبره! آيا دا له عصبيت نه ده، چې يو سړی له خپل قوم سره مينه کوي؟ هغه وفرمايل: "نه بلکه عصبيت دا دی، چې يو سړی په ظلم کې د خپل قوم مرسته وکړي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَمِنَ الْعَصَبِيَّةِ أَنْ يُعِينَ الرَّجُلُ قَوْمَهُ عَلَى الْحَقِّ؟ قَالَ: "لاَ".[1]

له انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دی، هغه وايي: نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته يو سړی راغی، ويې ويل: ای د الله پېغمبره! آيا دا له عصبيت نه ګڼل کېږي، چې يوڅوک په حقه د خپل قوم مرسته وکړي؟ هغه وفرمايل: "نه".

[1] - رواه البيهقي.

# په پلرونو فخر کول

په پلرونو او نسب فخر کول اونور سپک ګڼل منع دي؛ خو د خپل نسب او پلرونو ريښتيني ښه کارونه او ښه خويونه يادول او د روزنې لپاره کشرانو ته دهغوی يادونه خير دی. په بدو پلرونو او نېکونو فخر کول ناروا دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة عن النبی صلی الله عليه وسلم قال: "لينتهين أقوام يفتخرون بآبائهم الذين ماتوا إنما هم فحم من جهنم أوليكونن أهون على الله من الجعل الذی يُدَهْدهُ الخراءة بأنفه. إن الله قد أذهب عنكم عبية الجاهلية وفخرها بالآباَء، إنما هو مؤمن تقی أو فاجر شقی. الناس كلهم بنوآدم و آدم من تراب". [1]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پېغمبر صلی الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې فرمايلي يې دي: "ځينې خلک به له دې منع کېږي، چې په خپلو هغو پلرونو فخر کوي، چې مړه شوي دي او هغوی د دوزخ سکاره دي او يا به خامخا د الله په مخکې له هغه ګونګټې نه هم سپک شي، چې سوتې په خپلې پوزې رغړوي. الله له تاسوڅخه د جاهليت خويونه او په پلرونو د هغوی فخر کول لرې کړي دي. په اسلام کې يا پرهېزګار مؤمن دی او

[1]- رواه الترمذی وأبوداود وأحمد والبيهقي في شعب الإيمان والبزار وابن مندة في كتاب التوحيد وابن وهب في الجامع وربيع بن حبيب في مسنده والكلاباذي في معاني الأخباروابن عساكر.

يابدمرغه بدکاره . خلک ټول دآدم اولاد دی او آدم له خاورې پيدا دی".

## احترام لپاره چاته ودرېدل

له ستړي مه شي پرته چاته يوائې د احترام او تعظيم لپاره ودرېدل منع دي او دا کار رسول الله صلی الله عليه وسلم بد ګاڼه.

په حديث کې داسې راځي:

عن أنس قال: "لم يكن شخص أحب إليهم من رسول الله صلى الله عليه وسلم وكانوا إذا رأوه لم يقوموا لما يعلمون من كراهيته لذلك" ۱

له انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: صحابه و ته له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه هيڅوک ډېر ګران نه ؤ؛ خو هغوی به چې کله رسول الله صلی الله عليه وسلم وليد چې راغی، نو نه به پاڅېدل، ځکه؛ هغوی پوهېدل، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم دا کار بد ګڼي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن معاوية قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "من سره أن يتمثل له الرجال قياما فليتبوأ مقعده من النار". ۲

---

[1] - رواه الترمذي وأحمد وابن أبي شيبة .

[2] - رواه الترمذي والطبراني في الكبير والأوسط وابن أبي شيبة وابن قانع في معجم الصحابة.

له معاويه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "څوک چې په دې خوشحالېږي، چې خلک ورته ودرېږي، نو هغه دې د ځان لپاره په اور کې ځای تيار کړي".

ځينې وخت او ځينې ودرېدل خو د شرک تر بريده رسېږي، لکه ملي ترانو، ملي بيرغونو او توغونو، پاچايانو، چارواکو او پوځي افسرانو ته، په ځانګړې توګه ودرېدل او ځانګړی يون کول.... او همداسې يو بل ته د تعظيم لپاره ودرېدل شرک نه دی، خو ناروا دی، عسکري انضباطي يون او تنظيم هم ناروانه بلکه مطلوب دی.

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبى أمامة قال: خرج رسول الله صلى الله عليه وسلم متكئا على عصا فقمنا له، فقال: "لاتقوموا كما تقوم الأعاجم يعظم بعضهم بعضا"[1]

له ابو امامه رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم را وواته او امسا يې لګوله، نوموږ ورته پاڅېدو، هغه وفرمايل: "تاسو داسې مه ودرېږئ لکه عجميان چې يو بل ته پاڅېږي او درناوی يې کوي".

[1] ـ رواه أبوداود وأحمد والبيهقي في شعب الإيمان وابن أبي شيبة والطبري في تهذيب الآثار.

# دوه کسان سره مه بېلوه

د دوه نږدې کسانو بېلول او د هغوی په منځ کې کېناستل يا تېرېدل هم منع دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن عبدالله بن عمرو عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "لا يحل لرجل أن يفرق بن إثنين الا بإذنهما". [1]

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روايت دی هغه له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې ويې فرمايل: "هيچا ته دا روانه دي، چې دوه کسان د هغوی له اجازې پرته سره جلا کړي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ " لاَ يُجْلَسُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ إِلاَّ بِإِذْنِهِمَا ". [2]

عمرو بن شعيب له خپل پلار نه روايت کوي هغه يې له نيکه څخه روايت کوي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " د دوه کسانو په منځ کې به دهغوی له اجازې پرته څوک نه کېنول کېږي". په بل روايت کې داسې راځي:

---

[1] - رواه أبوداود والترمذی وأحمد والبخاري في الأدب المفرد.

[2] - رواه أبوداود والبيهقي والطبراني في الأوسط.

عن عمرو بن شعيب عن أبيه عن عبد الله بن عمرو: أن رسول الله صلى الله عليه و سلم قال: "لا يحل للرجل أن يفرق بين اثنين إلا بإذنهما"[١].

عمرو بن شعيب له خپل پلار نه روايت كوي هغه يې له نيكه څخه روايت كوي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " هيچا ته دا روا نه دي،چې له اجازې پرته دوه كسان سره جلا كړي".

## څوک له خپل ځای پاڅول منع دي

هر څوک چې په يو مجلس يا جومات كې په كوم ځاى كې لومړى كېناست؛ هغه د هغه حق دى، هيڅوک، بل څوک له خپله ځايه نه شي پاڅولى، كه كشران په خپله خوښه د احترام لپاره مشرته ځای پرېږدي؛ بيا خير دى.

په حديث كې داسې راځي:

عن ابن عمر عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "لا يقيم الرجل الرجل من مجلسه ثم يجلس فيه ولكن تفسحوا وتوسعوا"[٢]

له عبدالله بن عمر رضى الله عنهما نه روايت دى هغه له پيغمبر صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي، چې فرمايلي يې دي:

---

١ - رواه البخاري في الأدب المفرد وأبوداود والترمذي وأحمد.

[٢]- رواه البخارى ومسلم.

"يو سړی دې داسې نه کوي، چې بل سړی پاڅوي او بيا هلته پخپله کېني، بلکه ازاد او پراخه شئ".

معنی دا چې لږ لږ سره وخوځېږئ او بيرته شئ، چې ځای پيدا شي او راتلونکی پکې کېني.

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "من قام من مجلسه ثم رجع إليه فهو أحق به"[1]

له ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: "څوک چې له خپل ځای پاڅېد او بيا ورته راستون شو، نو هغه دهغه ځای ډېر حقدار دی".

معنی دا چې که څوک له يو مجلس نه د کوم ضرورت له کبله پاڅېد، نو دهغه ځای نيول په کارنه دي، ځکه چې هغه کله له ضرورت پوره کولو نه وروسته راستون شي، نو په خپل ځای کې به کېني.

[1]- رواه مسلم.

# د لارې په سر کېناستل

د لارې په سر هسې بې ځايه کېناستل منع دي او که د ېره وي، يا کوم ضرورت وي، نو بيا به د لارې حق ادا کېږي، چې په دې لاندې حديث کې څرګندېږي:

عن أبى سعيد الخدرى عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "إياكم والجلوس بالطرقات" فقالوا:يارسول الله! ما لنا من مجالسنا بد نتحدث فيها. قال: "فإذا أبيتم إلاالمجلس فأعطوا الطريق حقه" قالوا: و ما حق الطريق يارسول الله؟ قال: "غض البصر، وكف الأذى وردالسلام والأمربالمعروف والنهى عن المنكر"١ وفى رواية: "وتغيثوا الملهوف و تهدوا الضال".٢

له ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی هغه له پېغمبر صلی الله عليه وسلم نه روايت کوي، چې فرمايلي يې دي: "تاسو د لارو په سر مه کېنئ" صحابه ؤ وويل: ای د الله پېغمبره! مونږ ته له خپلو دېرونه هيڅ چاره نشته، مونږ پکې خبرې کوو. هغه وفرمايل: "چې خامخا کېنئ، نو د لارې حق اداء کړئ." هغوی وويل: ای د الله پېغمبره! د لارې حق څه شی دی؟ هغه وفرمايل: "د سترګو ښکته کول، چاته زيان نه رسول ، د سلام ځواب ،په نېکيو امر او له

[1]- رواه البخارى ومسلم.
[2]- رواه أبوداود.

بديو منع" او په يو روايت کې دي چې: " له حيران انديښمن او حاجتمند سره به مرسته کوئ او لاز ورکي ته به لار ورښيئ ".

معنى دا چې که په لاره پردى ښځې تېرېدې، نو نه به ورګورې ، سترګې به ښکته کوې او نور هر د ښېګړې او اړين کاربه کوې او نورو ته به يې هم وايې ، له بدو به هم ځان ساتې او هم به نور ترې منع کوې.

## يوه څپلۍ په پښه کول

په يوې څپلۍ، بوټ، چپړې..... کې تلل راتلل او يوائې يوه په پښه کول منع دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "لايمشي أحدكم فى نعل واحدة ليحفهما جميعا أو لينعلهما جميعا"[1]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: " ستاسو هيڅوک دې په يوې څپلۍ کې تلل نه کوي، يادې دواړه پښې ابله کړي او يادې دواړه څپلۍ په پښو کړي".

[1]- رواه البخارى ومسلم.

خو که څوک معذور ؤ او یوه پښه یې وه، نو هغه ته بیا روا دي. بلکه په کار دي، چې یوه څپلۍ یا بل کوم شی په پښه کړي.

خو چې دواړه پښې یې روغې وي، نو باید چې داوړه یا پښې ابله وي او یا دواړه پټې وي. ځکه چې په دې صورت کې د یوې څپلۍ په پښو کول له یوه پلوه حماقت او کم عقلي ده، له بله پلوه د بدن توازن نه ساتل کېږي؛ مزل اومنډه پکې نه وهل کېږي، همدارنګه د راغورځېدو او راپرځېدو احتمال هم پکې شته، بده هم برېښي ، بد او ناوړه عادت هم اخلي او کومه ګټه هم نه لري.

## د غړکۍ له خولې اوبه څښل

د اسلام د نظافت له اصولونه دا هم دی، چې د غړکۍ یا بل کوم لوی لوښي له خولې اوبه څښل منع دي بلکه په جام، ګیلاس یا بل لوښي کې باید ترې را واخیستل شي او بیا وڅښل شي.

په حدیث کې داسې راځي:

عن ابن عباس قال: "نهٰی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن الشرب من فِيِّ السقاء"[1]

[1] - رواه البخاری ومسلم.

له عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دی هغه وايي: "رسول الله صلی الله عليه وسلم د غړکۍ د خولې نه له څښلو څخه منع کړې ده".

دا کار د تلوث، ککړتيا، ناپاکۍ او کرکې لامل دی، نو ځکه منع دی.

## په لوښي کې پوکی کول او سا اخيستل

په لوښي کې پوکی کول او سا اخيستل هم د ککړتيا، ناپاکۍ او کرکې لامل دی، نو ځکه منع دی.

په حديث کې داسې راځي:

عن ابن عباس قال: "نهٰی رسول الله صلی الله عليه وسلم أن يتنفس فی الإناء أو ينفخ فيه"[1]

له عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی هغه وايي: "رسول الله صلی الله عليه وسلم له دې منع کړې ده، چې په لوښي کې سا واخيستل شي يا پوکی پکې وشي".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبی سعيدالخدری أن النبی صلی الله عليه وسلم نهی عن النفخ فی الشراب فقال رجل: القذاة أرٰها فی الإناء. قال:

---

[1]- رواه أبو داود وابن ماجة.

"أهرقها" قال: فإني لا أروىٰ من نفس واحد. قال: "فأبن القدح عن فيك ثم تنفس"[1]

له ابو سعيدخدري رضي الله عنه نه روايت دی، چې پېغمبر صلی الله عليه وسلم د څښلو په لوښي کې له پوکي کولو نه منع وکړه. يو سړي وويل: که په لوښي کې کوم خلی ووينم، نو بيا؟ هغه ورته وفرمايل: " توی يې کړه" هغه وويل: زه په يوې سانه خړوبېږم. هغه ورته وفرمايل: "لوښی له خولې څخه جلا کړه، بيا سا واخله".

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أبي قتادة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "إذا شرب أحدكم فلايتنفس فى الإناء وإإذا أتى الخلاء فلا يمس ذكره بيمينه ولا يتمسح بيمينه".[2]

له ابو قتاده رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " په تاسو کې چې څوک څه څښي، نو په لوښي کې دې ساه نه اخلي او کله چې د حاجت کولو (اودسماتي) ته ځي، نو خپل شرمځای ته دې ښی لاس نه ور وړي او په ښي لاس دې استنجا نه کوي".

[1]- رواه الترمذى والدارمي.
[2]- رواه البخارى ومسلم.

# د غیرت دین

اسلام د پاکۍ، غیرت، عفت، عصمت، شرافت، آدابو او ښېګړو دین دی. اسلام د دې اجازه نه ورکوي، بلکه دا په کلکه منع کوي، چې یو څوک "دیوث" شي.

(دیوث) هغه مردګاو ته ویل کېږي، چې د خپلې ښځې په زنا نه خفه کېږي، یا ښځې چلوي.

په حدیث کې داسې راځي:

عن ابن عمر أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "ثلاثة قد حرم الله عليهم الجنة: مدمن الخمر، والعاق، والديوث الذي يُقر فى أهله الخبث"[1]

له عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: " درې کسان دي، چې الله پرې جنت حرام کړی دی: یو په شرابو روږدی، بل له مور او پلار نه سرغړوونکی او بل هغه دیوث، چې په خپل کور کې زنا کول پرېږدي او بده یې نه ګڼي".

دیوث ( مفسد فی الأرض ) دی وژل یې په کار دي.

[1]- رواه أحمد والنسائي والد ينوري فى المجالسة والطبري في تهذ يب الآثار والخرائطي في مساوئ الأخلاق.

## نشې، شراب او جواري

په اسلام کې د شرابو څښل او هر ډول نشه راوړونکي شيان حرام دي. لکه: چرس، بنګ، پوډر، اپين، نسوار، چلم، سګرټ، پان، القات او داسې نور. همدارنګه جواري او قمار کول يا شطرنج کول اونور عبث کارونه هم حرام دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن عبدالله بن عمرو أن النبی صلی الله عليه وسلم نهٰی عن الخمر، والميسر، والکوبة، والغبيراء. وقال: "کل مسکر حرام".[۱]

له عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی، چې پيغمبر صلی الله عليه وسلم له شرابو ، جواری، شطرنج او هر ډول شرابو نه منع کړې ده او فرمايلي يې دي: "هرنشه راوړونکی شی حرام دی".

شراب او نشه راوړونکي څښل او خوړل هم د صحت زيان دی، هم د جېب او اقتصاد زيان او تاوان دی او هم د دين زيان او ګناه ده.

جواري په ناروا دمال ګټل او بايلل دي او جواري هم ناروا ده.

[۱]- رواه أبوداود وأحمد والبيهقي والبزار والطبراني في الكبير.

شطرنج كول يا دې ته ورته نورې د ناستې لوبې لكه قطعې او تاشونه كول هم حرام دي. په دې كې يو وخت ضائع كېږي، بل مال ضائع كېږي او بل په ډېرې ناستې او سرتيتۍ د صحت او روغيتا تاوان دى، بل له د ينې او دنيوي كارونو: خوب، عبادت او نورو ګټورو كارونو نه ځان ايستل دي او په دې ټولو سربېره كله كله د جنګونو او جګړو لاملونه جوړېږي. بله دا ده، چې د نورو لوبو او ورزشونو غوندې كومه بدني او ورزشي ګټه هم نه لري، بلكه لازيان او تاوان دى. د تختې او مېزلوبه هم ناروا ده.

په اسلام كې هر ډول نشه حرامه ده.

په حديث كې داسې راځي:

عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " كل مسكر خمر وكل مسكر حرام".[1]

له عبدالله بن عمر رضى الله عنهما نه روايت دى، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " هرنشه راوړونكى شى شراب دي او هر نشه راوړونكى شى حرام دى".

په بل حديث كې داسې راځي:

[1]- رواه مسلم وأبوداود والترمذي والنسائي وابن ماجة والشافعي وأحمد وابن حبان والدارقطني والبيهقي في السنن الكبرى والصغرى وشعب الإيمان ومعرفة السنن والآثار وابن أبي شيبة وعبدالرزاق وأبوعوانة والطبراني في الكبير والأوسط والصغير ومسندالشاميين والبزار والطيالسي وأبويعلى وابن الجارود والطحاوي والطرسوسي في مسنده وابن الأعرابي في معجمه وابن مقرئ.

عن جابر أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "ما أسكر كثيره فقليله حرام".[1]

له جابر رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: " دكوم شي ډېر چې نشه راوړي، نو لږ يې هم حرام دي".

هغه خلک، چې وايي: نسوار، چلم، سګرټ او چرس نشه نه راوړي، غلطه ده. ځکه، چې په دې لږو خو دوی عادت دي؛ که يو ناروږدی يې استعمال کړي، يا دوي يوه لپه استعمال کړي، نو خامخا يې نشه کوي او مونږ ليدلي دي، نو د دې لږ او ډېر ټول حرام دي.

په بل حديث کې داسې راځي:

عن أم سلمة قالت: "نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن كل مسكر ومفتر".[2]

له ام سمله رضی الله عنها نه روايت دی هغه وايي: " رسول الله صلى الله عليه وسلم له هر نشه راوړونکي او سستوونکي شي نه منع کړې ده" لکه بې هوښه کوونکي مخدرات.

[1] - رواه الترمذی وأبوداود والنسائي وابن ماجة والشافعي وأحمد والدارمي والدارقطني وابن حبان والحاكم وابن أبي شيبة وعبدالرزاق والبيهقي في السنن الكبرى والصغرى وشعب الإيمان والطبراني في الكبير والأوسط والبزار أبويعلى وابن الجارود والطحاوي وابن مقرئ.
[2] - رواه أبو داود وأحمد والبيهقي وابن أبي شيبة والطبراني.

نو نسوار که فرضا نشه راوړونکي نه شي ـ او دي ـ نو سستوونکي او فتور راوړونکي خو خامخا دي.

## د شرابو لس مجرمان

شراب او د نشې شيان د انساني ټولنې د بدمرغۍ، کړاوونو او ستونزو لاملونه دي، نو له همدې امله له شرابو سره د اړيکو لرونکيو لسو مجرمانو په هکله داسې حديث راغلی دی:

عن انس رضي الله عنه قال: "لعن رسول الله صلى الله عليه وسلم فى الخمر عشرة: عاصرها، و معتصرها، وشاربها، وحاملها، والمحمولة إليه، وساقيها، وبائعها، وأكل ثمنها، والمشتري لها، والمشترىٰ له"[1]

له انس رضي الله عنه نه روايت دي هغه وايي: "رسول الله صلى الله عليه وسلم د شرابو په هکله په لسو کسانو لعنت ويلی دی:

- په جوړوونکي او زبېښونکي.
- په طلب کوونکي.
- په څښونکي.

[1]- رواه الترمذى وابن ماجة والطبراني في الأوسط والبزار وابن الأعرابي في معجمه.

- په باروونکي او راوړونکي.
- په هغه چا چې ورته وړل کېږي.
- په نورو باندې څښونکي.
- په پلورونکي.
- د شرابو د پيسو په خوړونکي.
- په اخستونکي.
- چاته چې اخيستل کېږي.

په بل حديث کې داسې راځي:

عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لعن الله الخمر، وشاربها، وساقيها، وبائعها، ومبتاعها، وعاصرها، و معتصرها، وحاملها، والمحمولة إليه".[1]

له عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " الله په شرابو، د شرابو په څښونکي، د شرابو په ګرځوونکي او ورکوونکي، د شرابو په پلورونکي، د شرابو په اخيستونکي، د شرابو په زبېښونکي د شرابو په طلب کوونکي، د شرابو په راوړونکي او په هغه چا لعنت ويلى دى، چې وروړل کېږي".

[1] - رواه أبو داود وابن ماجة وأحمد وأبويعلي والبيهقي والحاكم والطبراني في الكبير والأوسط والصغير وسعيد ابن منصور في مسنده والربيع بن حبيب في مسنده.

## پړمخه څملاستل

اسلام له انسان څخه مهذب، مؤدب او د ښو او کره خويونو خاوند دروند سنګين انسان جوړ وي او له هر ناوړه او نامناسبه کار څخه يې منع کوي. پړمخه څملاستل هم منع دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة قال: رأى النبى صلى الله عليه وسلم رجلا مضطجعا على بطنه فقال: " إن هذه ضجعة لا يحبها الله".[1]

له ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې پيغمبر صلى الله عليه وسلم يو سړی وليد، چې پړ مخه په خېټه نسکور پروت ؤ، نو ويې فـرمـايـل: " دا ډول څملاستل الله تعالی نه خوښوي".

نو هر هغه کار، چې الله او د هغه پيغمبرېې نه خوښوي؛ هغه منع دی.

پړمخه څملاستل ډېر سپک کار دی، عورت هم معلومېږي، بد او سپک هم ښکاري، معدې، زړه او لړمون ته زور هم ورځي او له شيطان سره هم پکې ورته والی دی، نو ځکه منع دی.

[1]- رواه البخاري في الأدب المفرد والترمذى وأبوداود وابن ماجة وأحمد وابن حبان والبيهقي في شعب الإيمان والبزار والطيالسي وابن أبي شيبة وعبدالرزاق والطبراني وأبوالقاسم في معجم الصحابة.

## په چت څملاستل

هغه چت، چې چاپېره دېوال ونه لري؛ په هغه ويده کېدل منع دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن جابر قال: " نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم أن ينام الرجل على سطح ليس بمحجور عليه".[1]

له جابر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: " رسول الله صلى الله عليه وسلم له دې منع کړې ده، چې يو سړی په داسې چت ويده شي، چې رابند نه وي او دېوال ونه لري".

دا سې چت، چې دېوال يا بل را ايساروونکی او پرده ونه لري، لکه د اوسپنې يا لرګي کتارې، يا بل کوم را ايسارونکی شي او دېوال؛ په هغه ويده کېدل منع دي. او دا ځکه چې په دې کې د لوېدو خطر دی.

داهم د اسلام له ښېګړو او محاسنونه يوه ښېګړه ده، چې انسان له زيان او تاوان څخه ژغوري.

---

[1]- رواه الترمذی.

## په لارې او سيورې کې اودس ماتی کول

په اسلام کې ناوړه او سپک کار کول او خلکو ته زيان رسول منع دي. له دې جملې دا هم ده، چې په لار او د کېناستلو په سيوري کې د انساني حاجت (اودسماتي) کول منع دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "إتقوا اللاعنين" قالوا: وما اللاعنان يارسول الله؟ قال: "الذي يتخلى فى طريق الناس أو فى ظلهم".[1]

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: " تاسو له دوه لعنتي کارونو څخه ځانونه وژغورئ " صحابه ؤ وويل: ای د الله پېغمبره! دوه لعنتي کارونه کوم کوم دي؟ هغه وفرمايل:" هغه څوک چې د خلکو په لار يا د هغوی په سيوري کې اودسماتی کوي".

مطلب دا چې څوک په لاره کې ياد کومې ونې او دېوال سيوري ته غټې او وړې ميتيازې وکړي؛ ټول خلک پرې لعنت وايي، نو تاسو له دې کارنه ځانونه وساتئ.

[1]- رواه مسلم وأبوداود وأحمد والحاكم والبيهقي وأبويعلى.

## په سوړې کې ميتيازې کول

په سوړې کې هم د ميتيازو کول هم منع دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن عبدالله بن سرجس قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "لايبولن أحدكم فى جحر".[1]

له عبدالله بن سرجس رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: " په تاسو کې دې هيڅوک په سوړې کې ميتيازې نه کوي".

داځکه؛ کېداى شي، چې له سوړې کوم مار،لړم يا بل ضرر رسوونکى ښځنده را اوځي او ودې چيچي، يا دې ووېروي او جامې دې ککړې شي، يا هلته د بې ضرره ښځنده ځاله وي لکه مېږي، چينديخې يا نور او هغوته زيان ورسېږي، يا ځاى ډډ وي ، ښکته شي او د پريوتو او ککړتيا سبب شي، يا دې پکې پښه لاړه شي او زيان درورسېږي.....

[1] رواه أبوداود او النسائي وأحمد.

## حاجت کې پنا ځای ته تلل

د انساني حاجت (غټو او وړو ميتيازو) کولو لپاره بايد پنا ځای ته لاړ شې او د خلکو مخکې حاجت کول منع دي.

په حديث کې داسې راځي:

عن جابر قال: "كان النبى صلى الله عليه وسلم إذا أراد البراز إنطلق حتى لايراه أحد".[1]

له جابر رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: " پېغمبر صلی الله عليه وسلم به چې کله د اودسماتي کول وغوښتل، نو داسې ځای ته به لاړ، چې هيچا نه ليده ".

که دا اوسني عصري تشنابونه وي، نو دا هم مناسب پنا ځايونه دي او که دباندې وي، نو هم پنا او لرې ځای ته تلل په کار دي.

[1] - رواه أبوداود والبيهقي في السنن الكبرى ودلائل النبوة.

## پاک کارونه په ښي او ناولي په کيڼ لاس

ښه او پاک کارونه په ښي لاس کول او ناولي او د ککړتيا کارونه په کيڼ لاس په کار دي. په حديث کې داسې راځي:

عن عائشة قالت: "كانت يد رسول الله صلى الله عليه وسلم اليمنى لطهوره وطعامه وكانت يده اليسرى لخلا ئه وما كان من أذى".[1]

له عائشې رضى الله عنها نه روايت دى هغه وايي: " د رسول الله صلى الله عليه وسلم ښى لاس د اوداسه ، پاکۍ او خوړو لپاره ؤ او کيڼ لاس يې د اودسماتي کولو او د هغو کارونو لپاره ؤ، چې ځه ککړتيا پکې وي ".

## په حمام کې ميتيازې کول

د اسلام د پاکۍ او طهارت له حکمونو څخه دا هم دی، چې د لمبلو او اودس ځای، او حمام کې متيازې کول ناروا دي.

په حديث کې داسې راځي:

[1]- رواه أبوداود والبيهقي وأحمد في السنن الكبرى وشعب الإيمان.

عن عبدالله بن مغفل قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " لايبولن أحدكم فی مستحمه ثم يغتسل فيه أو يتوضأ فيه فإن عامة الوسواس منه".۱

له عبدالله بن مغفل رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: " په تاسو کې دې هيڅوک د لمبلو په ځای کې ميتيازې نه کوي، چې بيا پکې لامبي، يا پکې اودس کوي، ځکه چې عامې وسوسې او اندېښنې له همدې امله وي".

## له استنجا نه وروسته د لاس ښه پاکول

له استنجا نه وروسته بايد لاس په خاوره يا صابون ښه پاک ومښل شي، که خاوره وي، ښه ده که نه، نو صابون هم کفايت کوي.

په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة قال: "كان النبی صلى الله عليه وسلم إذا أتى الخلاء أتيته بماء فی تور أو ركوة فاستنجٰی ثم مسح يده على الأرض ثم أتيته بإناء آخر فتوضأ".۲

[1] ـ رواه الترمذی وأبو داود والنسائي وابن ماجة وأحمد والحاكم والبيهقي والطبراني وعبدالرزاق.
[2] ـ روأبو داود والنسائی والدارمي وأحمد والبيهقي.

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: " پېغمبر صلى الله عليه وسلم به چې کله حاجت ته ورته، نو ما به ورته په کوزې يا پتکي کې اوبه راوړې، نو استنجاء به يې پرې وکړه، بيا به يې خپل لاس په ځمکه ومښه، بيا به مې ورته بل لوښی راوړ، نو اودس به يې وکړ".

په خاورو بدبويي ورکېږي، که خاوره نه وي او څه صابون مابون وي؛ هم کفايت کوي؛ خو له حاجت او استنجا کولو نه وروسته د لاسونو ښه پاکول اړين دي.

## څو ناوړه کارونه

په اسلام کې بې دليله بدګمان، چاپسې بې ځايه نوغی وهل، جاسوسي، حسد، کينه، تېرايستل او بې ځايه مرورېدل او دښمني ناروا دي. په حديث کې داسې راځي:

عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "إياكم والظن فإن الظن أكذب الحديث، ولاتحسسوا، ولاتجسسوا ولاتناجشوا ولاتحاسدوا ولاتباغضوا ولاتدابروا وكونوا عبادالله إخوانا".[1]

---

[1]- رواه البخارى ومسلم.

له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: " تاسو له بدګمانۍ څخه ځانونه وژغورئ ځکه، چې بدګماني ډېره دروغجنه خبره ده، له چاپسې نوغي مه وهئ،د چا عيبونه مه لټوئ، د تېر ايستلو لپاره په نرخ ځوک مه تېزوئ، د چاپه خوشحالۍ او ترقۍ مه خپه کېږئ، کينه مه کوئ، يو تر بله دښمني او مرورېدل مه کوئ او د الله بندګان ورونه ورونه شئ ".

په بل حديث کې اسلام له بدو کارونو او ګناهونو نه داسې منع کوي:

عن عبادة بن الصامت رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم وحوله عصابة من أصحابه: " بايعوني على أن لا تشركوا بالله شيئا، ولا تسرقوا، ولا تزنوا، ولا تقتلوا أولادكم، ولا تأتوا ببهتان تفترونه بين أيديكم وأرجلكم، ولا تعصوا فى معروف، فمن وفى منكم فأجره على الله، و من أصاب من ذلك شيئا فعوقب به فى الدنيا فهو كفارة له، و من أصاب من ذلك شيئا ثم ستره الله عليه فهو إلى الله، إن شاء عفاعنه و إن شاء عاقبه " فبايعناه على ذلك.[1]

له عباده بن صامت رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم نه چاپېره يوه ډله صحابه ناست وو او هغه ورته وفرمايل: " له ما سره په دې بيعت وکړئ، چې له الله

[1]- رواه البخارى ومسلم.

سره هيڅ شريک مه پيدا کوئ، غلا مه کوئ، زنا مه کوئ، خپل بچي مه وژنئ، په چا تور مه تړئ او په نېکيو کې له مشرانو سرغړونه مه کوئ؛ په تاسو کې چې چا دا کارونه بشپړ کړل، نو بدله يې په الله ده اوڅوک چې په دې کارونو کې کوم شي ته ورسېد او په دنيا کې يې سزا ورکول شوه، نو هغه د هغه لپاره له ګناه نه خلاصي شو او که څوک په دې کې کوم کارته ورسېد او بيا الله پرې پرده واچوله، نو د هغه کار له الله سره دی، که خوښه يې شوه؛ وبه يې ښښي او که وغواړي، نو عذاب به ورکړي". مونږ ورسره په همدې بيعت وکړ.

په بل حديث کې رسول الله صلى الله عليه وسلم له بدو کارونو څخه داسې منع کوي:

عن صفوان بن عسال قال: قال يهودى لصاحبه: إذهب بنا إلى هذا النبى: فقال له صاحبه: لا تقل نبى، إنه لو سمعك لكان له أربع أعين. فأتيارسول الله صلى الله عليه وسلم فسألاه عن آيات بينات؛ فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "لاتشركوا بالله شيئا، ولا تسرقوا، ولا تزنوا، ولا تقتلوا النفس التى حرم الله الا بالحق، ولا تمشوا ببرئ إلى ذى سلطان ليقتله، ولا تسحروا، ولا تأكلوا الربو، ولا تقذفوا محصنة، ولا تولوا للفرار يوم الزحف، و عليكم خاصة اليهود أن لا تعدوا فى السبت" قال: فقبلا يديه ورجليه وقالا: نشهد أنك نبى. قال: "فما يمنعكم أن تتبعوني؟" قالا إن داؤد عليه السلام

دعا ربه أن لا يزال من ذريته نبى و إنا نخاف إن تبعناك أن يقتلنا اليهود".[1]

له صفوان بن عسال رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې يو يهودي خپل ملګري ته وويل: له مونږ سره دغه پېغمبر ته لاړ شه. ملګري يې ورته وويل: پېغمبر ورته مه وايه، که وايې وري، نو سترګې به يې څلور شي. دواړه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلل او د څرګندو دليلونو په هکله يې ترې پوښتنه وکړه؛ هغه ورته وفرمايل: "له الله سره هيڅ شريک مه پيدا کوئ، غلا مه کوئ، زنا مه کوئ، په ناحقه هغه څوک مه وژنئ، چې الله حرام کړی وي، کوم بې ګناه ددې لپاره حکومت ته مه حواله کوئ، چې ويې وژني، کوډې مه کوئ، سود مه خورئ، په پاکلمنې ښځې باندې تور مه لګوئ، د بريد په ورځ تېښته مه کوئ او تاسو يهود خو په ځانګړې توګه د خالي په ورځ تېری مه کوئ". صفوان وايي، چې هغوی دواړو د رسول الله صلى الله عليه وسلم لاسونه او پښې ښکل کړې او ويې ويل: مونږ ددې ګواهي کوو، چې ته پېغمبر يې. هغه وفرمايل: "نو ولې ما پسې نه راځئ؟" هغوی وويل: داود عليه السلام خپل رب ته دعاء کړې وه، چې د هغه په اولاد کې تل يو پېغمبر وي او مونږ وېرېږو، چې که ستا تابعداري مو وکړه، نو يهوديان به مو ووژني".

په بل حديث کې له ګناهونو څخه منع داسې راغلې ده:

[1] - رواه الترمذى وأبوداود والنسائى والبيهقي في دلائل النبوة والطحاوي.

عن معاذ قال: أوصانی رسول الله صلى الله عليه وسلم بعشر كلمات، قال: "لا تشرك بالله شيئا وإن قتلت و حرقت، ولا تعقن والديك وإن أمراك أن تخرج من أهلك و مالك، و لا تتركن صلاة مكتوبة متعمدا فإن من ترك صلاة مكتوبة متعمدا فقد برئت منه ذمة الله، ولا تشربن خمرا فإنه رأس كل فاحشة، و إياک والمعصية فإن بالمعصية حل سخط الله، و إياك والفرار من الزحف و إن هلك الناس، وإذاأصاب الناس موت وأنت فيهم فاثبت، و أنفق على عيالك من طولك ولاترفع عنهم عصاك أدبا وأخفهم فی الله".[1]

له معاذ رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: ماته رسول الله صلى الله عليه وسلم د لسو خبرو نصيحت کړی دی:

- اګرکه ووژل شې يا وسوځول شې؛ هم له الله سره هيڅ شی مه شريکوه.
- اګر که درته ووايي، چې له خپل کور او مال نه واوځه؛ هم له مور او پلار نه سرغړونه مه کوه.
- قصداً يو فرض لمونځ هم مه پرېږده ځکه، چا چې قصداً کوم فرض لمونځ پرېښود ، نو له هغه نه د الله ذمه لرې شوه.
- شراب مه څښه ځکه، چې دا د هر بې حيا کار سر دی.

---

[1] ـ رواه أحمد والطبراني في الأوسط والطبري في تهذيب الآثار والمروزي في تعظيم قدرالصلاة وعبدالرزاق وأبونعيم في معرفة الصحابة.

- له ګناه نه ځان وساته ځکه، چې د الله غوسه د ګناه له کبله راځي.
- اګر که ټول خلک ومري؛ هم له برید نه مه تښته.
- ته چې په کومو خلکو کې وې او هغوی باندې مرګاني وبا راغله، نو ټینګ پاتې شه.
- په خپلې ښځې، بچو او کور له خپل مال نه لګښت کوه.
- د ادب امسا ترې مه پورته کوه.
- له الله نه یې وویروه.

اسلام سراسر د سمون او ښېګړو ټولنیزو آدابو او سپېڅلیو خویونو دین دی. په دې کتاب کې ما د ساري او بېلګو په توګه د اسلام ځینې محاسن ولیکل، داسلام ټولو محاسنو باندې کتابتونونه ډک دي.

دا کتاب او ځینې نور کتابونه ما د پېښور په مرکزي زندان کې لیکلي وو او نور کار مې پکې هغه وخت وکړ، چې کله د (آی ایس آی) له مجرمانو نه د هغوی د یو کرنیل: (عازب) په تبادله کې الله تعالی را ازاد کړم.

مراجع او مأخذونه د پاڼو په لمنو کې لیکل شوي دي، نو ځکه مې هسې د کتاب له پنډولونه ډډه وکړه او بیا مو تکرار ونه لیکل.

## لړليک